# د ګوانتانامو انځور



لیکوال:
ملا عبدالسلام ضعیف






۱۳۸۵ هـ لمریز

قضاوت لـه وخت لـه مخـه قضا نـه ده
دباطـل حكـم هـيخ كلـه فتـوى نـده

حق هغـه دي چـې قـران ورتـه حق وايـې
حـق دبـوش او دكليـنتن مـدعى نـده

چې څوک رب ته وفادار پـه خولـه او زړه وي
دغـه لاره دثـواب ده خطـا نـده

كه حاكم شي كه محكوم شي كه مفقود شي
چـې الله تـه مجـرم نـه يـې ګناه نـده

سادګي نـده دعقـل امتحـان دي
دا دنيـا عبـث دژونـد او خنـدا نـده

دلتـه هرڅـه دڅيـړني نـه رازيـږي
پـه تعليـق كـې رابنكيـل شـوي معمـا نـده

كـه شـفا دي خـداي ازل كـې كـړي نـه وي
دا خـواږه عـسل دي زهـر دوا نـده

پـه سرو سپينو دي دخسو سودا مكـړه
ماجلـه پـه حـساب كـې وړيـا نـده

اعتـراض دهغـه چـا پـه ځـان منمـه
چې زمـا ديـن او زمـا وطـن تـې سودا نده

شـخه ږيـره لـو پكـړي ملـي څـادر مـو
دتعلـيم او تربيـې نيمګړتيـا نـده

چتـه ژيـره نيكتـايي او پتلـون واړه
زمـوږ دپـوهي او كلتـور رهنمـا نـده

پوهـه هـسې دضـمير پـه رڼـا بنكـاري
اي ضـعيفه سـيلقه دغـستانده

# د ګوانتانامو انځور





لیکوال: ملا عبدالسلام ضعیف

دکتاب نوم: **دکوانتانامو انځور**




لیکوال: ملا عبدالسلام "ضعیف"

تصحیح اوتدقیق: محمد حسن "حقیار"

کمپوز او دیزاین: خیرالله "فضلي"

دخپریدو نیته: ۲۰۰۶/۰۶/۲۸

دچاپ شمیر: ۵۰۰۰ ټوکه

بسم الله الرحمن الرحيم

# تقريظ

الحمد لله وحده والصلاه والسلام على من لا نبي بعده.

اما بعد:

محترم ملا عبدالسلام ضعيف صاحب هغه پيژندل شوي شخصيت دي چې دافغانستان داسلامي امارت له پلوه په اسلام اباد کې سفير و. اګر چې مونږ دواړو ورونو: (عبدالرحيم مسلم (دوست) او استاذ بدرالزمان( بدر) دزندان ددورې نه مخکې ضعيف صاحب ليدلي نه و، خو دخبري رسنيو له لارې دهغه دځيرى او نوم سره اشنا شوي وو. دلومړي ځل له پاره مونږ ضعيف صاحب دقندهار دهوايي ډګر په خواکې دامريکايي اغزن زندان په ځپرګيو کې وليد.

کله چې د ۲۰۰۱م کال دستمبر په (۱۱) يوولسمه دامريکا په نيويارک او واشنګټن حيرانوونکي بريد وشو او امريکا له ډېرې وارخطايی او ترورى دناټو اونورو پوځونو ملګرتيا دډالرو، وسلو او وسائلو سره زمونږ سيمې ته راوخوځېده، دترهګرى په خلاف دجنګ ډرامه پيل شوه او په افغانستان د کرغېړن يرغل ټکل وشو. دتل غوندې دافغانستان په دغه ناورين کې دپاکستان دپوځي استخباراتو: اي ايس اي غوالنګه شوه. دګانډيو هېوادونو په هکله د اي ايس اي کرغېړن کړه وړه او عزائم دتاريخ يو تور باب دي چې له هيچا پټ نه دي.

دا چې دترهګرۍ په خلاف دجنګ په ډرامه کې صلیبیانو څه وکړل او څه غواړي؟ او د پاکستان پوځي استخباراتو دافغانستان او نړیوالو سره کومې لوبې رواني کړي دي؟ او په یو وخت کې هڅې کوي چې په خپل زعم کې الیعاذ بالله هم الله تعالی وغولوي: هم نړیوال، امریکا، افغانستان او دپاکستان ولس ته په سترګو کې خاورې واچوي او په دې ترتیب اوبه خړې کړي او کبان په کې ونیسي..... ددې اونورو اړوندو موضوعاتو او خبرو تفصیل به لوستونکي دضعیف صاحب په دې کتاب ((دګوانتانامو انځور))اوزمونږ دواړو ورڼو په شریک لیکل شوی کتاب ((ماتې زونلې)) کې وګورئ.

مونږ دواړه ورونه ددغه جنګ لومړني قربانیان یو چې د ۲۰۰۱م کال دنومبر په (۱۷) اولسمه د اي ایس اي دافغاني ګوډاګیانو په لمسون اي ایس اي ونیولو او دډالرو دپنډ او پېړ مبلغ پر بدل کې یې په امریکا وپلورولو. زمونږ ګونا دخپل دین، وطن او نوامیسو نه دفاع وه؛ کله چې دډیورنډ دمنحوسې کرښې تاریخي او قانوني حیثیت رنګ شوي و اورنګ شو هغه وخت راورسېده چې دافغانستان دخپلې خاورې پخوانیو اصلي پولوته ورسیږي او خپل حقه حقوق تر لاسه کړي. نو ددې په ځای چې پاکستان حق ته غاړه کښېږدي او حق په حقدار وسپاري..... ټول افغانستان ته یې خیټه اوبو کې کېښوده او دخپلو افغان دښمنه افغان نماغلامانو نه یې دافغانستان په پاکستان کې دمدغمولو دعرائضو مطالبه وکړه، هغوي همداسي وکړل، او مونږ یې په کلکه مخالفت وکړ... نو ځکه اي ایس اي دجاري ناورین ښکار کړو.

زمونږ دنیولونه وروسته د ۲۰۰۲ م کال دجنوري په (۲) دوهمه ملا عبدالسلام ضعیف صاحب هم د اي ایس اي بزدلو جنرالانو او

کرنیلانو ونیوه او درې ورځې وروسته یې په امریکا خرخ کړ: دټولو مسلمانانو نیول او په امریکا پلورل دپاکستان له پاره یو لوی تاریخي شرم او عار دی، خو دهغه ضعیف صاحب پلورل تر ټولو لوي شرم او عار دی چې دپاکستان او ټولو نړیوالو طاغوتي قوانینو مطابق یې قانوني پاسپورټ، ویزه اونور اسناد لرل، پاکستان دافغانستان دسفیر په حیث منلي و او دقانوني ضمانت لاندې اوسېده. خو پاکستان دننګ، غیرت، بین الدولي، بین المللي، سفارتي او دیپلوماتي قوانینو، ادابو او ضوابطو نه شرمناکه سرغړونه وکړه، مونږ په لومړي ځل ضعیف صاحب دقندهار په امریکایي محبس کې ولیده.

وروسته بیا ګوانتنامو ته یو ځاي انتقال شولو او په یو بلاک کې په نږدې پنجرو کې سره پاتې شو. چې دغه سونزمن سفر او تاریخي مرحلې کې مو تر ډېره حده سره وپېژندل. دپنجرو په دغه ملګرتیا کې به مو اکثره یوتر بله دتحقیق جریاناتِ او دژوند دتودو سړو معلومات سره تبادله کول. ریښتیا خبره داده چې دضعیف صاحب ثبات، ښو اخلاقو، جرات او...... مونږ ډېر اغیزمن کړو. ضعیف صاحب په ډېرو سختو شرائطو کې حوصله له لاسه ورنه کړه. او ټولو کړاوونو او ربړونو ته یې دصبر او زغم اوږه ورکړه. په همدغو ستونزمنو شرائطو کې ورته الله تعالی دا توفیق هم ورکړ چې قران کریم یاد (حفظ) کړي. اکثره به دقرانکریم په تلاوت بوخت و. ښایي دمسلمانانو دغه کړاوونه، دردونه، تپونه، شهادتونه او ګنې ستونزې داسلامي نړۍ دویښتابه، یووالي، پاڅون او یون لاملونه شي او ټوله اسلامي نړۍ یو موټي او یو کور شي. مونږ نور ستاسو او دضعیف صاحب تر منځ نه پرده کیږو دا تاسو او دا مو ضعیف صاحب.

عبدالرحیم (مسلم دوست) او استاذ بدرالزمان (بدر)

# څه پرضعیف صاحب څه یې پرلیکنه

د«ګوانتانامو انځور» دبشر دخواخوږو او نړیوالې وروروليدمدعیانو ؟؟ په لاس د بشر درټلو، کړولو، سپکولو، ځورولو او دردولو لپاره دهغه جهنم ته ورته ځای «ګوانتانامو» ترخې خاطرې دي چې دځمکې پر سر یواځې خپله خپل مثال دی او بس.

دکتاب لیکوال ښاغلی ملا عبدالسلام ضعیف هم هغه څوک دی چې له شک پرته دیو دیني عالم او په نړیواله کچه دیو پیاوړي دیپلومات په توګه ځلېدلی خو دلیکوال او ادیب په توګه لا چا نه پېژنده خو دادی حالاتو او اړتیاوو لیکوال هم کړ.

زه له دولسو کالو راهیسې له ضعیف صاحب سره پېژنم، دپېژندګلوی په پیل کې یا هغه وخت چې دده سیرت مې نه و مطالعه کړی نو دده دصورت یا فزیکي جسم په لېدلو مې داسې انګېرله چې ښایي ضعیف صاحب به رښتیا ضعیف نه وي، دی به ډېر کبرجن او په اصطلاح کلانکاره وي خو کله مې چې پېژندګلوي ورسره ډېره شوه او په یو وزارت کې ده ته د آمر او ماته دمامور په توګه دکار چانس پیدا شو نو دده په اړه خپل خیالي اټکل مې ناسم وموند او درک مې کړه چې ملا عبدالسلام دحق پر وړاندې ډېر «ضعیف» دی.

دضعیف صاحب دسیاسي کفایت، مدیریت، اهلیت او شخصیت په اړه ځکه څه نه لیکم چې دی داسې ورک نومی او ټیټ پوړی څوک نه وو چې ګوندې څوک یې نه پېژني «عیان ته څه حاجت دبیان» خو دده

به یي ویل: چه په مونږ هر څه تیریږي الله (ج) دي زمونږ نور ملګري په حفظ او امان کې وساتي.

۲ چه کله به ملګري خلاصیدل دنورو ملګرو حال به یي لید، نو دخپل خلاصون په خوشحالۍ به نه پوهیده. او دا احساس به ورسره وو چه کاش چه ټول خلاص شوي واي او یا زما په ځاي بل مظلوم خلاص شوي واي.

نو عجیبه غوندي احساس- عجیبه غوندي وروري – عجیبه قرباني ځومره اخلاص- ربنتینولي- الله (ج) دي یې له هر یوه څخه قبول او منظور کړي.

۳- تر ټولو بختور خو ضعیف صاحب وچه دافغانستان نمائنده یي په ګوانتانامو کې ولیدلای شو او بالاخره ورسره راغي.

او داسي نمائنده چه داسلام – دیانت- افغانیت- او شفقت نښې له ورایه وباندي ښکاري.

داهغه ځوك دي چه زه یې پیژنم که ددي نمائنده، په واك او اختیارکي واي، نو هیڅ افغان ته به په هیڅ ځاي کې هیڅ نوع تکلیف نه وو رسیدلي داسلامي وروروليِ، او افغاني وحدت سمبول: **A-B**

په ښاغلي ضعیف صاحب ډیري سختي او ناخوالي تیري شوي. دنورو ورونو په شمول دي الله (ج) اجر ورکړي.

او الله (ج) دي ټول ملګري لدي ظلم او ستم څخه راخلاص کړي خصوصاً: زما ګران ورور خیرالله خیر خوا. له ټولولوستونکو څخه هیله من یم چه دمظلومو بندیانو په حق کې د دعا لاس پورته کړي.

ورور مومحمدقاسم( حلیمي)

دیو نړدې همکار او ملګري په توګه ماته هم ویاړ دی چې دوست مې دیو بریالي دیپلومات . کارپوهه او محترم شخص په توګه وځلېد

دضعیف صاحب وروستی ماموریت په پاکستان کې چې داسلام دکلا او دمسلمانانو لپاره دیو ځانګړي هېواد په توګه جوړ شوی دافغانستان ددولت اوافغانانو استازیتوب (سفارت) وو.

سفیرڅوک وي، څه حقوق، مسئوولیتونه اودندې لري دا هغه پوښتنې دي چې له هر لوستوال او کم لوستي سره یې ځوابونه شته . په دې مانا چې که دوه هېوادونه ان که دوه ولسونه هم یو له بل سره وران شي او میلیونونه وګړي یې هم په جګړه کې ووژل شي نو سفیر یا استازي یې مصئون وي په مسلمانه ټولنه کې خو پرېږده ان په نا مسلمانه ټولنه کې هم همدا دود دی . او دا دود ډېره تاریخي لرغونتیا لري او که چا دادود مات کړي نو دنړیوالو له ملامتیو او جګړو سره مخ شوي..

راشده خلفاوو به دکفارو دسفیرانو ډېر احترام کاوه او یو ځل خو یې دکفارو په لاس دخپل استازي پر وژنه له هغوی سره جهاد اعلان دهغوی دلسګونو تنو وینې توېې کړې.

۲۷ کاله وړاندې ایران دامریکا له دیپلوماتانو سره نامناسب چلند وکړ چې ددښمنۍ اور یې اوس هم بل دی او دایران ملت پکې سوځي .

خو پاکستاني چارواکیو دافغان دولت او افغان مسلمان ولس له استازي سره چې دواړو هېوادونو دیو بل حکومتونه په رسمیت هم پیژندلي وو. ددې سفیر رسمي اعتبار لیک یې هم منلی، سیاسي پاسپورت، ویزه ،دکار اجازه هر څه یې ورکړي و څه وکړل ؟؟

افغانان ډېر ستر . غیرتي او با شهامته خلک دي او هر وخت یې دیومسلمان ګاونډي په توګه له پاکستان سره ښې اړیکې لرلې دي

دهغوی دتېري پر وړاندې یې له صبر او زغم څخه کار اخستی ناځوانی، له ژوبلې ګوتې نیول یې ورسره نه دي کړي. خو په مقابل کې یې هر وخت پاکستان دافغانانو داحسان او ځوانی ځواب په ناځوانی ورکړی دی.

راځئ چې له پاکستان سره دافغانانو دځوانی او ستر توب دا دوه بېلګې ولولو.

دظاهر شاه دوران ۱۹۷۱ م کال و. دپښتونستان په سر له پاکستان سره دافغانانو تبلیغاتي او سړه جګړه ښه په درز کې روانه وه چې په همدې وخت کې هند له پاکستان سره ونښت ددواړو هېوادونو ترمنځ کلکه جګړه روانه وه. دافغانستان دکابینې په غونډه کې ځینو وزیرانو وړاندېز وکړ چې اوس پاکستان له هند سره نښتی دی نو دافغانستان لپاره ښه چانس دی چې له پاکستان سره جګړه اعلان او دپښتونستان مسئله له نظامي لارې حل کړي. په هغه وخت کې پاکستان له نظامي پلوه په ډېر کمزوري دریځ کې و چې یوائې له هند سره یې هم دجګړې تاب نه درلود په داسې حال کې چې دافغانستان برې او دپښتنو دله لاسه وتلې خاورې بیا ترلاسه کول سل په سلو کې باوري و. خو دکابینې ډېرو غړیو له دې وړاندېز سره مخالفت وښود، دلیل یې دا و چې پاکستان زمونږ مسلمان ګاونډی هېواد دی او اوس په ډېرو ناوړو شرایطو کې قرار لري او ان دوېش له خطر سره مخ دی نو که مونږ پرې حمله وکړو دابه یوې ناځوانی نه ورته کار وي مونږ باید دخپل مسلمان ګاونډي له ناوړه حالت څخه ګټه وانخلو او نه یې باید له ژوبلې ګوتې ونیسو.

که څه هم پاکستان خپل مخ په اینه کې لیدلی و او انګېرلې یې وه چې افغانستان به هرومرو پرې حمله کوي خو کله یې چې دافغانانو

داسترتوب او ځواني ولیده نو لِه حیرانتیا ورته ګوته په غابښ شول دهند او پاکستان ددې جګړې پایله داشوه چې پاکستان دهند پر وړاندې ماتې وخوړه . جنرال نیازي خپله وسله دهندي جنرال (ارورا) پر وړاندې کېښوده. او شیخ مجیب الرحمن له پاکستان څخه بېل شوی خپلواک بنګله دیش اعلان کړ.

د ۱۳۵۱ هـ ل دسه شنبې په ورځ دمرغومي په ۲۱مه چې د ۱۹۷۲ م کال دجنورۍ له یوولسمې سره سمون خوري پاکستان په پېښور کې افغان قونسلګرۍ ته خبر وکړ چې دپاکستان ولسمشر ذوالفقار علي بوټو غواړي همدا نن کابل ته سفر وکړي. بوټو په هماغه ورځ دیو پلاوي په مشرۍ چې هوايي مارشال رحیم خان. دوسلوالو ځواکونو لوی درستیز جنرال غلام اسحاق خان ( چې وروسته دپاکستان ولسمشر ِشو) او نور په کې وو دهوایي ځواکونو اړوند الوتکه کې کابل ته راغی او دخواجه رواش په هوايي ډګر ورته په خپله دظاهر شاه . صدراعظم ډاکټر محمد ظاهر. دصدارت مرستیال ډاکټر عبدالصمد حامد ددربار وزیر علي محمد لخوا هرکلی وویل شو .

بوټو په کابل کې څلور ساعته تېر کړل او دګلخانې په ماڼۍ کې یې له افغان مشرانو سره خبرې اترې وکړې نوموړی دافغانانو له ځوانۍ، مروت او شهامت څخه دومره اغېزمن وو چې که کچه یې دهغه له دې څرګندونو څخه معلومولی شو. (( ددې لپاره کابل ته راغلی یم چې خپل دمننې او احترام مراتب داعلیحضرت همایوني. دافغانستان دحکومت او خلکو حضور ته ددوی دهغه له همدردۍ څخه ډک دریځ په اړه پخپله وړاندې کړم چې زموږ دهېواد په اړه یې په هغه وخت کې خپل کړی وو چې له یو لوی کړکیچ سره مخ وو . افغانستان دېته ورته دریځ په ۱۹۶۵ م کال هم غوره کړی و او پاکستان چمتو دی چې

دافغانستان ددې ځوانمردانه اقدام په بدل کې تر ممکنه حده متقابل اقدام وکړي ...»

افغانستان وپنځ سال سلطهٔ طالبان

دسردار داؤد خان دصدارت په زمانه کې بيا هم دپاکستان او افغانستان ترمنځه دپښتونستان په سر لانجې. اوديو بل پر ضد پروپاګند روان وو چې دپاکستان دبهرنيو چارو دوزارت مرستيال سکندر مرزا کابل ته په يو رسمي سفر راغی ځرنګه چې سکندر مرزا دافغانانو مېلمه وو نو افغان حکومت کابل راډيو ته رسماً خبر ورکړ چې دپاکستاني مېلمه د احترام لپاره دې پاکستان پسې پروپاګنداو ترهغې چې سکندر مرزا دلته وي دپښتونستان خپرونه بنده کړي.

خو پاکستانيو چارواکيو دافغانانو ددې احسان حق څومره ادا کړ!!

دافغان دولت او ولس له رسمي استازي سره يې څه چلند وکړ اودافغانانو له مجبور حال څخه يې څومره دځان په ګټه کار واخيست.

دافغانانو څومره وينې يې وڅښلې. دروسانو او دهغوی ګوډاګيانو پر ضد له افغان جهاد څخه يې څومره ناوړې ګټې واخيستې. ددې ملت له بچيانو(سربښند نکيو طالبانو) سره يې څه وکړل ؟! دا هغه حقايق دي چې ليکل يې ډېر وخت او حوصله غواړي.

زه ګومان کوم چې دنړۍ تاريخ به داسې بېلګه ونه لري چې يو څوک دې خپل هم مذهبه. په دين. دود او دستور کې ګډ ببګناګاونډی او په خپل هېوادکې بر حاله سفير دکفارو دخوښۍ لپاره بل هېواد ته چې په دين. عقيده. ژبه. فکر ... کې ترې بېل او په جغرافيوي لحاظ دنړۍ

بل سرکې وي داسې لاس تړلی وسپاري لکه چې پسه ليوانو ته سپارل کېږي.

راځئ دلته ايمانونه او وجدانونه پرتله کړو يوې خواته داسې ايمانونه چې خاوندان يې دامريکا (صهيونيسم) دخوښې لپاره هر ذلت ته غاړه ږدي له ازادۍ. خاورې. ننګ او ناموس هر څه ورتېرېږي او بلې خواته په نوم ((ضعيف)) خو ددومره پياوړي ايمان او بشپړې عقيدې خاوند چې دګوانتانامو دزندان تکليفونو او شکنجو يې هم ايمان ټکنی نکړ.

نه يواځې دا چې ټکنی او کمزری نه شو. بلکې لا فولادي شو دايمان او سپنې يې دزحمتونو او کړاوونو( آب) وخوړ نوره هم کلکه شوه اوکله چې امريکايې چارواکي ورته په زندان کې وړاندېز کوي چې له ګونتانامو يا جهنم ته ورته زندان څخه به يې هم خوشې کړي ، لکونه ډالر او منصب به هم ورکړي خو له دوی سره دې دوست او همکار واوسي نو په ډېرې زړورتيا پيغمبري ځواب ورکوي: (رب السجن احب الی ممايدعونني اليه) يعنې: (( زما ربه زندان راته غوره دی له هغه څه څخه چې دوی مې ورته بولي .)) چې هغه ديو مسلمان ورور په ضد له کفر سره مرسته وه .

پاکستانيو چارواکيو دی ولې امريکاته وسپاره؟ ښکاره ده چې دچوکۍ دساتلو او دماديات دترلاسه کولو لپاره .خو ، ښه شوه چې دامريکا ډول ته دنڅېدونکيو پاکستانيانو او افغانانو په امريکا پورې تړلې هيلې هم پوره ؟؟شوې. دوی خو معاذ الله له الله ج څخه هم پر امريکا کلک باور درلود . امريکاددوی معبود ګرځېدلی و، دوی انګېرله چې دوزخ او جنت دواړه دامريکا په واک کې دي دلته به جنت راوړي دامريکا له راتګ سره به دلته د افغانستان په وياله کې

شهد او شیدې وبهېږي. په دوی هماغه د پخوانیو قومونو کیسه شوې چې قرآن مونږ ته بیان کړې : (( فلما راوه مستقبلا اودیتهم قالوا هذا عارض ممطرنا بل هو ما استعجلتم به فیه ریح عاصف تدمر کل شئ بامر ربها )) یعنې:(( کله یې چې په فضاکې ورېځې ولیدې چې د دوی کلیو ته مخامخ راروانې وې نو دوی وویل چې دا پلنې ورېځې دي چې پر مونږ ورېږي ( نه نه ) .بلکې دا هغه څه دي چې تاسې یې په غوښتلو کې بېړه کوله (عذاب دی) په دې کې تونده او تېز باد دی چې د خپل رب په امر هر څه له منځه وړي . ))

لوېدیځوالو هم انګېرله چې امریکا به مونږ ته د ژوند ټول نعمتونه راوړي نور به نو زحمت نه وي.... خو دا دی د دوی د اټکل پر خلاف ، امریکا هم پاکستاني ولس او هم افغان ولس ته اور بل کړ او وینو چې هره ورځ لسګونه بې ګناه هېوادوال وژني. په ناموس یې تېری کوي او کومه نخره پاتې ده چې ویې نکړه. نیستي او غربت خپل وروستي پړاوونه وهي، د هیچا سر. مال او ناموس خوندي ندی. لنډه دا چې امریکا باران نه بلکې توپان وخوت.

په دې کتاب کې د بشر د مدعیانو لخوا د بې ګناه ، مظلوم او کړېدلي بشر ته د سزا ورکولو. د هغوی د بې پته کولو د انسانیت د سپکاوي ښه ریښتیني انځور کښل شوی دی .

دا څرګنده ده چې لدوی سره بندیان له دې پرته بله ګناه نلري چې د ځمکې پرسرله الله ( ج ) پرته د بل چا جباریت نه مني، د اوسنیو فرعونانو او نمرودانو په وړاندې د تسلیمۍ او سجدې سر نه ټیټوي ، او په همدې خاطر کړول کېږي. ځورول کېږي. (( وما نقموا منهم الا ان یومنوا بالله العزیزالحمید)) یعنی : (( او دوی ترې غچ نه اخلي مګرپدې خاطر چې دوی یوائې په عزیز او حمید خدا ی(ج ) ایمان لري .

ښاغلي ضعيف هم له همدې په خداى ج مئينو كسانو او د الله ج د نور په ډيوه ستي پتنګ دى. دا كتاب ده د خپلو سترګو ليدلى حال او په ده تېرې شوې ترخې خاطرې دي.

پوره باور دى چې دامريكا دتمدن، ديموكراسۍ، پرمختګ، ازادۍ او دبشر دحقوقو په چېغو ډېر غوليدلي او دلوېديځ ژوندانه ډېر تږي به ددې امريكايي سراب په ليدلو ماړه او دوخت ددې لوى فرعون اصلي څېره به ورته ښكاره شي نور نو درانه ضعيف صاحب ته په ده دتېرو شويو عذابونو او كړاوونو دا جرونو او په افغانستان كې دسوچه اسلامي نظام دنفاذ دعاګانې كوم.

محمد حسن حقيار

۱۳۸۵ هجري لمريز دچنګابښ لومړۍ






**سریزه**

دټولو کایناتو څښتن پیدا کوونکي او پالونکي ته ثنا اود نړی ستر لاربنود او دهغه ورونو لاربنوونکو اودکورنی ټولو غړیو او ورسره ټولو ملګرو ته درودونه او سلامونه، دلوی متعال څښتن شکر کوم چی دلوی رحمت په بخښنولو سره یې داوسنی نړی داستکباری قوت له خونړیو منګولو څخه سالم راویستم او نوی ژوند یې را په برخه کې اوله هغو ورونو څخه یو جهان مننه کوم چی زما په خوشي کولو کې یي کوښښ کړی دی.

چون د ننني دنیا دتروریست او ویره اچونکو په نامه داستکباری قوت له خوادیوویشتم قرن، تر ټولو دظلم اوبی قانونه نېولو خوشې کولو لړی روانه کړې ده، اوپه ګوانتانامو کې یی دقانون خلاف، دملل متحد، او بشری ادارو، له اعتراضونو سره سره دبی سرنوشته بندیانو ساتلو ته له قانونی محکمي پرته دوام ورکړی دي، چی داخپله تر ټولو لوی تروریستی عمل دی، چی زه هم ددغه ښامار په خوله کی دپاکستانی مخلصینو !!؟له خوا لویدلی وم، چی بیا یی په ګوانتانامو کی ترستوني کښته کړم، چی تر دریو کالو اولسو میاشتو وروسته بیا افغان حکومت ته وسپارل شوم.

ډېرو ورونووغوښتل چی له دغه جریانه خبر شی، او د هغه مفصل بیان واوری او ډېرو ورونودمبارکي په لیدوکي چي راتلل، او ډېرو ورونو دټیلفونونو په ذریعه رانه وغوښتل ، چی دا انځور ځومره چی ژر ممکن وی وباسم، او ورونو ته یی تقدیم کړم، ماهم دنا چاری له کبله د دغو ورونو د ارزو پوره کولو په خاطر دغه لړ خاطرات دبیلګي په توګه

ولیکل، الله (ج) دې وکړي چې دډېرو وروښو سوالونه په کښې جواب شوي وي.

ګرانو او محترمو لوستونکو کیدای شي، تاسو زما په لیکلی وړه ډالي کې څلورو ځیزونو ته دلوستلو په وخت کې ګوته ونیسی، اول داچې ډېر داسی لیکلي به ولولئ چې د ادبی پلوه پکښې نیمګړتیاوي وی او کله خو به داملا نیمګړتیا ولری. دا چې له یوي خوازه لیکوال نه یم، او دا اول ځل دی چې داسی لیکنی ته زړه ښه کوم، بل دا چې کله ناکله دښه صحت احساس نکوم. اوله روحی مشکلاتو سره مخ کیږم نوهیله ده چې معذرت مو ومنئ

دویم دا چې ځینی لیکنی شاید څه ذهنی فشار ولری اوله لوستلو سره یې ستا سوپه زړه کي هیښنونکې څه پېداشی، اویا په دماغ درته بوج راولی، اویا داچې ځینی لوستونکی ښایي اعتراض وکړي چې ځینی مطالب دځینو شرایطو مطابق باید ذکر شوی نه وای، که بالفرض داسی څه پیداشی زه ستاسو دفکر او نظر درناوی او احترام کوم او په ځای یی بولم البته زما سره د دوو شیانو احساس ډېر اوډیردی، اول دا چې له مسلمانانو سره په مختلفو نومونو او دسیسو ناوړه کړه ونشی چې هغه دانسانیت له حده وتلی وی اود ځناورو تر حده بد چلند ورسره وشی، بل دا چې دبشر د حقوقو په نامه باید له مسلمانانو سره درغلی او دوکه بربنډه او وغندل شی، اومسلمانه ټولنه بایدد داسی دوه مخه شیطانت او په ګبین کې ګډو زهرو څخه ځان وساتي . داسی پلانونوته ځیر او ویښ واوسي او مخه یې ونیسی.

دریم داچې په لیکلو کی به غلیظ او شدید الفاظ ومومي چې دځینو لوستونکو په نظر به له ادبي چوکاټه وتي اوپه ځای نه وی، اوځینی لوستونکی یې شاید تعصب وبولي .ګرانه لوستونکیه په الله (ج) قسم

دی له چا سره شخصي تعصب نه ساتم، خودا لیکل به دوه مفهومه لري یودا چې زما شدت به زما دپوره مظلومیت نماینده ګي کوي چې دهغودعمل په مقابل کې به زما عکس العمل اوددې الفاظو کارول به زما دپرسیدلي زړه بوج کم کړي.

دویم دا چې په ټولنه کی هر سړی باید په دی پوی شی چی هر سړی دخپلو اعمالو مسؤولیت لری هغه که هر څوك وی.

څلورم په لیکنه کی د ځینو مملکتونو پالیسۍ اومنافقانه کړنو ته په زغرده اویا نا مستقیم ډول اشاره یا شدیدالفاظ کارول یاغندل، ددی معنی نلری چی ملت ته داسی څه ویل په کار دی، داسی نه ده ، بلکې زما لیکنه یواځی دهغه وخت تر حکومتونو پوری محدوده ده اوبس. زه په ګاونډي هېواد پاکستان کې، قریب دوه کاله دافغانستان دلوي سفیر او ځانګړي استازي په توګه په رسمي دنده ګومارل شوی وم، او دا هغه حالت وو چې نړیوالو په ځانګړي توګه نااسلامي نړۍ دافغانستان داسلامي امارت موجودیت ددوی په اصطلاح دخطر یو لوی عامل ګڼلی وو، چې دځینو افغاني کړیوپه مرسته یې داسلامي امارت ختمولو ته بډې رانغښتې وي، او ددي کار لپاره یې په مختلفو لارو چارو غور کاوه، داسلامي امارت دمخالفینو او په خارج کې دځینو غربي کلتور پلووافغانانو سره، دامارت په نابودولو کې یې مشوري او مجلسونه کول، او په خارجي هېوادونو کې یې، په یوه او یا بل نامه غونډې او کنفرانسونه جوړ ول. په افغانستان بندیزونه ولګیدل، دتجارانو په ځینو صادراتو وارداتو، دپور پر راکړه ورکړه، په بانکي حسابونو، دحکومت دچارواکو پر سفرونو، او دالوتکو په تجارتي پروازونو، هم بندیزونه ولګیدل چې ټول ملت یې له کړاوونو سره مخ کړ، دا زما په ژوند کی ماته تر ټولو سترې اوستومانه حالت وو، چې دپاکستان دحکومت په دوه

مخې سیاست بیا تردې ټولو زیات ځوریدلم، چې له یوې خوا به یې دمقدس جهاد خبرې کولې، او له بلې خوایې خپل هوایې ډګرونه، او استخباراتي پټ معلومات ، امریکایانو ته دمظلومو افغانانو دوژلو، اودافغانستان دورانولو لپاره ورکول .

خو دا هرڅه وشول، زه ددغه دوه کلن مسؤولیت په وخت کې دحکومتې چارواکو، او عامه خلکو سره ډېر ناست ، او ولاړ یم، دپاکستان عام وګړي ، اسلامي احزاب اومطبوعات ،اسلام خوښه مسلمانان دي ، چې له اسلام سره پوره مینه لري، دپاکستان اوپه ځانګړي توګه دمشرف ددغه ناروا عمل خلاف وه، او ډېرې هلې ځلې یې کولې چې پاکستان داسې عمل باید ونکړي چې دتلپاتې کاونډې هېوادپه ضد داسې کار نامه تر سره کړي، چې دتاریخ لپاره یې په تندي تور خال پاتې شي، او له بل پلوه پخپله ورته هغه څه پیښ شي چې دګاونډي لپاره یې غواړي. مکوه په ما ، چې وبه شي په تا .

دپاکستان ولس له افغانستان سره ډېرې نیکۍ او ښیګړې کړې دي او په تیر تاریخ کې یې ورسره د ورور غوندې سلوك کړې دی، دپاکستان خلکو چې داسلامي اخوت او وروروليٰ له کبله کوم محبت له دطالبانو سره درلود او تردوی وړاندې یې دمجاهدینو سره درلود اوتراوسه مهاجرینوته یې په خپل کورکې ځاې ورکړې،ځانګړې قدر او ارزښت لري ډېر ورونه او خوندې ما ولیدلې چې دپاکستان دحکومت دپالیسي خلاف یې له طالبانو سره ستري همکارې کولې او لویې مظاهرې یې کولې، حتی ښځو به دخپلو ګاڼو تحفې چې تر ډېرو شیانو ورته محترمې دي طالبانو ته ورکولې ما دا لیدلې چې جوالې غریب به هم خپل په اندازه کمك کاوه چې دا زما لپاره ډېر په زړه پاتې انځور دي، زه دهغه ټولو مسلمانانو لپاره چې له افغانانو سره یې په غم کې ځان

شریك کړي، او ورسره یي الهي مینه کړي، له لویه خدایه ورته په دنیا او اخرت کې لوی اجر غواړم. که الله (ج) په ما رحمت وکړي، په ورځ دمحشر به زه ددغو ورونو او خویندو چې زموږ په غم یې ځان خبر کړي، شاهدي ورکوم انشاء الله.

دپاکستان ددیکتاتورانو او ځینو اجنټانو ناروا کړني، او پالیسي هغه قرباني نشي له منځه وړلی چې دپاکستان ملت تیرولسیزوکي کړي دي.

زه پخپله له هغه ټولو مسلمانانو ورونو او خویندو څخه ډېره مننه کوم چې دیرغلګرو دیرغلونو په وړاندی یی له موږ سره ترخپل وسه همکاری کړیده. الله (ج) مودی لدی څخه له سختو ابتلاګانو وساتی اود وروستی زمانې ناوړه فتنی او دفساد خپروونکی اذهانو زهرجن پلانونه دی الله ج په خپل لوی فضل زموږ په پاک افغانستان او ټولی اسلامی نړی نه خپر وی والسلام.

په درناوي

ملا عبدالسلام (ضعیف)

## زما خوب

دنیولوځو ورځي مخکې مې خوب لیده چې ډېر وحشت ناك غوندي وو، په خوب کې مې ولیدل چې خپل سکني ورور مې راشي، په لاس کې يې دقصابانو لویه او تیره چاړه وي، په مخ یې دقهر او غصې نښې ښکاریدي او په ډېر قهر او غصه وو. ما ته ښه نژدې راغی او لویه چاړه يې په لاس کې تاو راتاو کوله، ماته يې نیغ نیغ کتل، کله چې ښه نژدې راغي او ښه نژدي راته ودریده، په نرمه لهجه سره یې راته وویل: وروره زه ددې لپاره راغلي یم چې تا په دغه چاړه سره حلال کړم، دواړه لستوڼي يې رانغښتي وو، زه حیران وم او کله مې هم دا باور نه راتله، چې زما سکني ورور به دداسې بدې او ناروا ارادې تکل کړي وي، له بل پلوه ما کله هم له دې ورور سره بد سلوك نه وو کړي او نه مې کله بد ورته رسولي وو او نه مې دده دخفه کیدو هڅه کړي وه او ډېر ځله به مې ویل، چې څه توکه به کوي او یا به رواني ناروغي ورته پیدا شوې وي، خو دده په ډېر اصرار سره مطمئن شوم چې، دزړه له کومي هم دا اراده لري، ما دځان سره فکر کاوه چې مشر ورور که په دې سره خوشحالیږي، باید دا ارزو يې زه پوره کړم او که په قناعت سره بریالي نه شم نو به غاړه ورته کښېږدم او مقاومت به ورسره نه کوم، په ډېره نرمي سره مې ورته وویل وروره ما هیڅکله هم تا ته بد نه دي رسولي چې انتقام راڅخه واخلي او نه مې ستا په خلاف کوم کار کړي، څه سبب دی چې تا داسي غیر شرعي تکل کړي دی، خو ونه توانیدم چې قناعت ورکړم بالاخره ورته مې غاړه کښېښوده او ورته ومې ویل: وروره څه چې دي اراده کړي هغه پوره کړه خو بیا هم په دې تمه وم چې، کیداي شي تردې نیت تیرشي او رحم یې په زړه کې راشي، ځان مې ورته په ځمکه واچاوه او قرباني ته چمتو شوم.

وروړ مي بې له دي چې رحم راباندي وکړي، په غاړه يي د قصاب لويه چاړه راکښېښودله او په بېړه سره يي حلال کړم، دا خوب مي هغه مهال وليد ، چې پنځه شپې وړځي وروسته پاکستاني سرتيرو زما کور له څلورو لورو څخه محاصره کړ، خو ما دا حال تردې دمه نه چاته و ويلې او نه يې خپله په تعبير پوهيدم.

بسم الله الرحمن الرحيم

**قالت ان الملوک اذا دخلوا قرية افسدوها وجعلوا اعزة اهلها اذلةج وکذلک يفعلون. الاية**

**ترجمه: نو وويل بقليس چه بيشکه باچاهان هر کله چه ننوزی په کوم کلی په غلبه او قهر سره خرابوی دوی هغه کلی او گرزوی عزتمند دوسدونکو دکلی ذليله او خوار همدارنگه کوی.**

## کړيدلی انځور

د ميلادي کال ۲۰۰۲ دجنورۍ دمياشتي دوهمه وه چې دپاکستاني مقاماتو دنوي کال د مراسمو لړۍ ختمه شوه او شپه تيره شوې وه، په خپل کور کې مې دکورنۍ له غړو سره دمعمول په څير ژوند کاوه او د خپلو ورکو ورونو، او شهيدانو، چې دبي رحمه دوستم لاس ته دپنا په اميد لوېدلي وو په لټون وم، او له ځينی مختلفو مراجعو څخه مي دمرستي هيله کوله.

واقعاً له خپل برخليک نه ناخبره وم، او بل دا چې دداسي لوي غم او مصيبت په پيښيدلو راڅخه دخپل ځان غم هير و، او په دي لټه کې وم، چې دشمال ورونه به په څه شکل خپلو کورونو ته سالم ورسيږي، او څنګه به د غائبو ورونو دکورونو سره تماس ونيسو، او څنګه به د بې کوره شوو افغانانو په درد ځان خبر کړو،قريب ۸ بجي وی چې ناڅاپه د کور ساتندويانو خبر راوړ ، وامې وريدل چې يوڅو تنه پاکستانيان ملاقات ته راغلي او ځانونه حکومتي مامورين معرفي کوي.

کله چې زه دميلمنو لپاره هغه کوچني کوټې ته ورغلم چې دمعمول په څير به مونږ نابلده خلك پکښي ليدل او ومي ليدل، چې درې کسه چې يو يې پښتون و چې ځان يې دګلزار په نامه معرفي کړ او دوه نور کسان چې اوردو ژبې و په چوکيو کې ناست و ، ما سلام وکړ او ښه راغلاست

مي ورته ووايه. لاسونه مو سره ونښلول او کښيناست.و وروسته مي دچاي مناسبت وکړ او دوي ته مي انتظار کاوه چې دخه پيغام سره مله دي.

په دوي کې يو نفر وو چې طبيعي حالت يي دتعصب او دکرکې ډك معلوميده ، تور مخ، برداره او پرسېدلي لويې شنې شونډې، او پړسېدلي خېټه، او ځړېدلی جج لکه تازه چې ددوزخه استازی راغلي وي په ډېره بي احترامي يې په خبرو پيل وکړي اوويې ويل (يور ايکسليسني يوار نو مور ايکسليسني)

(your Excellency you are no more Excellency ) يعني ډېر محترمه ته نور محترم نه يې دا هغه الفاظ دي چې دډېری دښمنۍ او تعصب له مخې استعماليږی اود ډېر بي عقلو ترخولو وزي او کله يې هم ضرورت نه ليده کيده. او يواځې يې دتعصب او دښمني ځرګندونه کوله، بيايې وويل: چې ته پوهيږي امريکايان يو لوي سوپر طاقت دی، او څوك يې مقابله نشي کولي، او نه يې خبره ورګرځولاي شي نوهغوي تاته ضرورت لري چې تحقيق درڅخه وکړي، زموږ دراتګ موخه همدغه ده چې تا امريکايانوته تسليم کړو. او هغوی زموږ څخه راضي شي اوپاکستان هم له خطره بچ شی.

په ځواب کې مې ورته وويل: چې داخبره خو سمه ده چې امريکايان ستاسو په اصطلاح سوپر طاقت دي، خوسره ددی په دنيا کې قانون او اصول شته چې دهغي له مخي دنيا ټولي چاري پر مخ بيايې نو په کومو اسلامی اوغيراسلامی مروجه اصولو تاسو له ما سره داسي معامله کوئ او دکوم قانون له مخي تاسو مجبور ياست چې ما امريکايانو ته تسليم کړئ، ستاسو حق خو يواځې دادي چې ما ته ځواب راکړئ، او مهلت راکړئ چې زه ستاسو هيواد پريږدم او بس. خو دا لوغړن او کرغيړن او

بي رحمه مزدور په ډېرې سپين سترګۍ سره راته وويل: چې زموږ سره نن اسلام او قانون مطرح نه دي او يوازې دپاکستان ګټې مطرح دي او بس.

کله چې ما ددوي سلوك او وضعيت درك کړ ، معقوليت او دلائلو هيڅ ګټه نه رسوله مجبوراً ساکت شوم او ورته مي وويل: چې څه غواړئ هغه وکړئ موږ اوس ستاسو په لاس کې يو بې له يو پروردګاره بل څه نه لرو او پر هغه مي توکل دی.

وروسته دوي وويل: چې تر ۱۲ بجو پوري په کور کې اوسه، او وروسته به تا پيښور ته انتقال کړو خو زما کور څلور طرفه محاصره و، او دوتلو هيڅ لاره يې نه وه اونه مې دامید اوکمک مرجع درلودل، دتلفون دلارې مې دپاکستان خارجه وزارت سره تماس ونيو خومسوولومقاماتودجواب نه ډډه وکړه.

## له کوره ايستل

پورتني راغلي پلاوي دکوره له ا يستلو مخ کې راته وويل چې موږ تا پيښور ته انتقالوو چې هلته به ته زموږ سره اوسي او صرف امريکايان به درڅخه تحقيق کوي، او کيداي شي وروسته تر لسو ورځو بيرته خپل کور ته راشي، هم داسي اطمنان يې زما کور او فاميل ته ورکړی و چې تر هغه وخته چې زه لدوی سره په توَقيف کې يم، زما دفاميل لپاره به داوسيدلو ځاي، او مصرف ورکوي خو دا هرڅه په هغه ځاي پاتي شول. ديادوني وړ ده چې په دغه وخت کي ما د لسو ۱۰مياشتو ويزه درلوده، او دپاکستان دبهرنيو چارو وزارت هم راته رسماً مکتوب را ليږلي و، چې زه تر هغه وخته په پاکستان کې اوسيدلي شم تر څو په افغانستان کې شرائط عادي کيږي، او هم مي دملل متحد هغه مکتوب درلود چې په کې ذکر شوي وو، چې ددي مکتوب لرونکي يو اهم شخصيت دي او دده دشخصيت بايد احترام وشي او څوك ورسره غرض ونکړي، چې مطلب يې پاکستاني مقامات وو.

څه دپاسه دولس بجي وي چې دري موټره دکور مخي ته ودريدل، او راتلونکي لاري يې بندي کړي دخلکو او موټرو، تګ او راتګ يې ودراوه، او هغه ژورنالستان يې چې غوښتل يې دغه صحنه ويني او دپاکستان دغه ناروا، او ظالمانه عمل نړی، او په تيره بيا مسلمانانو ته وښيي نه پريښودل. ان تردې چې دليدلو فرصت هم ورنه کړل شو، ماته يې دراوتلو امر وکړ.

زه په داسی حال کې له کوره راووتم چې بچیانو مي چیغي وهلي او پاکستاني عسکرو چې داسلام دفاع خپله موخه ښیي دیوه مسلمان میلمه چې هیڅ جرم نلري هیڅ قانون جواز نه ورکوي، صرف د نامسلمانو دخوشحالولو، او دیوڅو پیسو لپاره کفارو امریکایانو ته ډالۍ کړي، دقران، او اسلام، دود، او عنعني دغیرت، او شهامت، دضیافت ،او میلمه پالني، دملي، او بین المللي، قوانینو داسلامي اخوت درحم، او شفقت په خلاف داسي ناروا جرئت وکړ،په هرصورت له کوره راووتم او حیران وم چې ولي داسي ظلم وشي، اوولي څوك نشته چې دداسي ظلمونو مخه ونیسي، هغه دبشر حقوق، او بین المللي قوانین، هغه ددیموکراسي او دیپلوماسي حقوق څه شول، په هر صورت له کوره دباندي لږ شیبه ودرول شوم، او ما دکور په طرف خپلو ماشومانو ته د کتلو جرئت نشو کولاي اونه می دتسلی اوازیاپیغام ورکولی شوای. بیا په هغه موټر کې کښېناستم چې ما یې هیڅ کله توقع نه کوله، او دپاکستان له مقاماتو څخه مي چې ځانونه یې زمونږ ورونه، او خالص مسلمانان معرفي کول، او کله کله خو به یې د مقدس جهاد خبري هم ترخولې ایستلې داسي امید نه درلود.

زه د منځ په موټر کې سپور کړل شوم چې یو امنیتي موټر مخ ته روان وو او بل یعني دویم تر شا بدرګه کاوه، هغه موټر چې زه په کښې وم دبیخي تورو ښیښو درلودونکي وو چې نه ما څوك لیدلي شوای، او نه زه چالیدلاي شواي، او امنیتي دای ایس ای IS.I کسان هم په دي موټر کې و ، چې البته اسلحه ورسره نه وه او نور دوه موټره مسلح کسان و ، او ټوله لار په همدي موټر کې موزیك چې ښځو په اردو ژبي سندرو بدرګه کاوه ورږ ورږ جوړ کړي و، دا ددې لپاره چي ماته څه ازار راکړي

ځکه دوي پوهیدل چې دا دشریعت او دین خلاف کار دي او دي ورباندي ځوریږي.

په لارکي مي دلمانځه کولو غوښتنه وکړه ځکه چې لمونځ په قضاء کېدو شو، په جواب کې مي واوریدل چې پیښور کې به یې وکړي او په ځو کرته مې تکرار کړل ګټه یې ونه کړه، او نه یې ماته وخت راکړ چې فرضیت په ځاي کړم او نه یې دوی پروا وکړه.

پېښور ته په رسېدو هغه دفتر ته ننویستل شوم چې ما فکر کاوه چې دپاکستان دځارګری دفتر به وي یعني IS I خو اوس هم مطمئن نه یم چې دا به کوم ځاي وو هلته ددفتر یوي ځانګړي کوټې ته راهنمایې شوم چې دښکلو میزونو او چوکیو درلودونکي و، او دپاکستان بیرغ، او دجناح عکس هم د میز پر سر پراته وه، یو پښتون سړي په ځرخنده چوکې کې ناست وو یو طرف او بل طرف ته یې دچوکې په ګرځولو حرکت کاوه.

دغه سړي چې میانه قد یې درلود او ږیره یې خریيلې او لوڅ سر و، سپین چکي پاکستاني کلتوري جامي یې په تن وي. مخي ته راغی او ویې وویل، ډیر ښه راغلي محترمه زه فلانکی یم، ددغه دفتر مسؤول یم، ته زمونږ سره میلمه یې او داسي میلمه یې چې خوښ مو یې او درباندي خوشحاله هم یو، خو زه نه پوهېدم چې ددي ټکو به څه معنا وه.

او په ذهن کې مي وګرځېدل چې داسړي په خپل قول کې صادق دی، خوښ او خوشحاله ځکه شو چې په ښو پیسو ورته خرڅیږم، دوی هغه ځوك دی چې انسانان د مالونو په څیر پلوری دلوړ قیمت مال دهر چا خوښ او پري خوشحالیږي، که نه انسان خو قیمت نلري، او نه یې ځوك پلوري خاصتاً په شلمه، او یوویشتمه پیړۍ کې، خو د پاکستان حکومت دا دظلم او انسان پلورني بازار تر اوسه هم تود او ګرم ساتلي دی دمسلمان خرڅول دډالرپه بدل رواوجهادبولی.

## په پېښور کې

د پیښور ددفترمسؤول دچاي او ډوډۍ ست وکړ او لمونځ مي هم وکړ وروسته بیا هغه کو ټې ته رهبري شوم کوم چې د دبندیانو یا نظر بندو کسانو لپاره تیاره شوې وه، نسبتاً وضعه ښه وه په خونه کې ګاز او برق وو، چې دیخ مخه یې نیوله، او تشناب یې هم درلود، اوبه پریمانه وي، او خوراکونه هم ښه و ، دقرانکریم یوه نسخه هم راسره و، کتابچه او قلم مي درلودل او په دروازه کې یو پیره دار (ساتونکی) ولاړ و، چې ما کله څه غوښتل په هغه کې یې مرسته راسره کوله.

نور تحقیق او پوښتنه نه وه، البته یو نفر چې په همدي دفتر کې یې دنده درلودله ډېر ډېر به راته خو په پښتو ژبه نه پوهېده، زه په اردو نه پوهیدم خو په انګریزي ژبه به مو خبري سره کولي، او ډېر ډېر به یې راته ویل چې څه به کیږي ( what will happened) او ما به ځواب یواځې داورکاوه چې الله پوهیږي زه نه پوهیږم.

ددفتر مامورین به راتله سلام او احترام به یې کاوه، خبري به یې نه کولي، خو کله به یې چې ماته کتل نو په سترګو کې به یې اوښکې رغړیدلې او بیرته به وتل، یو ځلي یو نفر خوني ته راغی چې ډېر زیات احترام یې وکړ ، او کرار کرار یې سلګۍ شروع کړي، سلګي یې وار په وار ډېرېدلې، بالاخره په ژړا شو او بیهوښه ولوید ، چې بیا نورو نفرو ژر په ځولۍ کې وایست، او لدی نه وروسته بیا بل څوك رانغی دا هغه وخت و، چې وروسته ترځلورو ساعتونو یې زه امریکایانو ته تسلیم کړم.

دوې شپې په همدغه خونه کې تیري شوي، په دریمه شپه چې تقریباً یولس ۱۱ بجي وي ما دخوب اراده وکړه ناڅاپه دخوني دروازه بیرته

شوه او يو سرې خوني ته راغی میانه قدیې و، او وهلي دبرس غوندي ږیره یې درلودله خړرنګه جامي یې په تن وي، څنګ ته راته کښېناست ،سلام یې واچاوه، دجوړ او ناجوړ پوښتنه یې وکړه، بیا یې وویل: ته خبر یې چې څه کیږي ما ویل نه بیا یې وویل تا ته چا څه ندي ویلي؟ ما ویل نه، هغه وویل چې همدا اوس موږ تا بل ځاي ته بیایو، پنځه دقیقي وخت لري که تشناب ته ځي او یا اودس کوي، زه تشناب ته ولاړم، او نوره مې پوښتنه و نه کړه چې چیري مې بیایئ، ځکه دربنتیا ځواب امید مې نه درلود، له پنځو نه تر لسو دقیقو وروسته یې له خوني بهر کړم، او څه نور نفر په ساده جامو کې ولاړ و ، دلاسونو ولچك یې په لاسو کې و، یوه توره پټۍ هم ورسره معلومېدله، لاسونو ته یې ولچك راواچول، او توره پټۍ یې په سترګو راوتړله، او دا لومړی ځل و چې زما لاسو ته ولچك ولویدل او سترګي مي وتړل شوی، جیبونه یې تلاشي کړل، قرانکریم، یو جیبي ډیجیتل قاموس یا ژباړونکي او څه پیسي وي هغه یې واخیستي، موټر ته یې په ټیله ټیله وهلو سره وړاندې کړم، او دوي ټول چوپ او غلي و چا خبري نه کولې.

موټر حرکت وکړ ، او تر یوه ساعت یا څه کم یو ساعت وروسته مي دچورلکي اواز ترغوږو شو، او په زړه کې مې وګرځیدل چې دا به ضرور میدان وي، او چورلکه به دامریکایانو وي، او په همدي وخت کې یو قیمتي ساعت چې پر لاس مې و، په یوه حمله له لاسه خلاص شو بیا مې و نه لید !! او امریکایانو ته هم نه و تسلیم شوی، موټر ورو ورو حرکت کاوه چې چورلکی ته ډېر نږدې شو ودرید، دموټر دروازې خلاصي شوې، او په دوو نفرو یې زه له موټر څخه راکښته کړم، او یو څو ګامه وروسته ودرول شوم، تر څه درنګ وروسته په اردو ژبه راته په غوږ کې



**د پاکستان له صدر رفیق تارړ سره د اعتماد لیک**
**د قبلېدو په حال کې**



**د پاکستان صدر رفیق تارړ د ډیپلوماسۍ د رسمي مراسمو په حال کې،**
**چې معمولاً په رسمي شکل له سفیرانو سره لیده کاته کوي.**


2000
PROTOCOL
all airports
H.E Mullah Abdul Salam Zaeef
Ambassador
Embassy of I.E Afghanistan
EXEMPTED BODY SEARCH ONLY


Pass 000407
- Pass is only valid if displayed.
- Pass holder is NOT exempted from baggage search.
- Pass is required to be surrendered immediately after relinquishing charge of the post for which issued.
- Pass is liable to cancellation if misused.
- Pass is valid for official protocol only.
- Pass cannot be photocopied.
- If lost, report immediately to: HQ ASF, Karachi-75200.

لوړ تصویرونه د هغه تشریفاتي کارتونو دي چــــې معمولاً د ډیپلومات د احترام لپاره ورکول کېږي، ترڅو د تلاشۍ په وخت ورسره مرسته وشي


25-4-2003 Identity Card No. 1180
DIPLOMAT
Name H.E.Mullah Abdul Salam Zaeef
Designation Ambassador
Mission Embassy of I.E.O. Afghanistan, Islamabad.
Signature of Holder


GOVERNMENT OF PAKISTAN
MINISTRY OF FOREIGN AFFAIRS
Note 1. The holder of this card is entitled to courtesies and privileges of a person of Diplomatic status.
Note 2 This Identity Card is Non-transferable and its loss should be reported at once to the Ministry of Foreign Affairs. The card must be returned to the Ministry of Foreign Affairs upon

لوړ کارتونه د ډیپلومات لپاره ورکول کېږي، چې د ملك په ټولو ساحو کې اعتبار لري او د یوه ملك د ډیپلومات هویت او د ډیپلوماسۍ حقوق تثبیتوي.


SIGNATURE OF HOLDER
DATE OF BIRTH 1.1963
PLACE OF BIRTH Kandahar
DATE 29.08.2000
HOLDER OF THIS PASSPORT
H.E Alhaj Mullah Abdul Salam Za'eef
OCCUPATION Ambassador Extra ordinary and Plenipotentiary of I.E Afghanistan in Islamabad. PAK


ISLAMIC REPUBLIC OF PAKISTAN
Visa No. VB112774
Type of visa MULTIPLE ENTRY
Date of issue 13-10-2001
Good for journey upto 12-10-2002
No. of visits allowed MULTIPLE
Duration of each stay 12-10-2002
Purpose of visit OFFICIAL

کلــه چــې زه پــاکستان پــــه امــریکا وپلورلم، نو د پاکستان په خارجه وزارت کې د اسیـــــا د بخش مسؤل عزیز احمـــــد خان مطبوعاتو ته ویلي وو چـــې دی مــو څکه د پاکستانه خارج کړی چې دده ویزه ختمه شوې وه. په لــوړ تصویر کـــې لیدلی شئ چې ۱۲/۱۰/۲۰۰۲ پورې د ویزې اعتبارشته. زه له عزیز احمد خان څخه چـې د افغانستان لپاره سفیر هم تېر شوی و، دده په درواغو ګیله من یم.

داسي وویل شوه ( خدا حافظ)!!! یعنی خدای ج دې مل شه لکه زه چې دکوم ځای په خوشحاله سفر روان یم دلته مې یقین شو چې امریکایانوته سپارله ده.

## امریکایانو ته تسلیمي

په همدي مهال چې امریکایانو ته سپارل کیدلم، یو دم خلکو راحمله کړه لکه شرمښان چې په ګډه حمله وکړي، په لغتو اوسوکانو یې ووهلم، او چیغي یې راباندي وهلي، کالي یې راڅخه کشول ، کله به یې په ګونډو، کله پړمخي، کله ستوني ستغ، او کله به پراړخ غورځول ، په چاکوګانو یې کالي راباندي څیرل، په همدي حال کې مې له سترګو څخه هم هغه توره پټه بیرته شوه، سترګي مي وغړولې و مي لیدل چې یوې خوا ته پاکستاني بې ننګه فوجي عسکر په نظامي دود صف ولاړ وه، او بلې خوا ته امریکایان څو تنه صف وه، او ډېر پاکستاني موټرونه چې یو پکښي دجنرال موټر ولاړ و چې پر پلیټ یې دجنرال نظامي سمبول و، او زما تماشا یې کول، چې امریکایانو سربېره پردي چې وهي او ټکوي مي بربنډ هم کړم، او داسلام دسپېڅلي دین دننګ او ناموس ساتندویانو په مړو سترګو ورته کتل، او پټه خوله ولاړ وه، او دتسلیمي لپاره یې تشریفاتي مراسم برابر کړي وه.

دا هغه صحنه ده چې په قبر کې به مې هم هیره نشي، دا چې زه قاتل نه وم، غل نه وم، هیڅ قانوني جرم مي نه درلود، که پاکستان (مجبورستان) دي ته مجبور وای چې هرومرو خپل دکور منل شوي میلمه ، نامسلمانو ته تسلیم کړي، دا به موږ بخښلي واي، هیر کړي به مو واي، خو دومره یې کولاي شواى چې امریکایانو ته یې ویلي واي چې اقلاً زموږ په حضور کې دلسي بد سلوکې ونکړي، لکه دوي چې لیدل او په مړو سترګو یې ورته کتل.

امریکایي وحشي، متعصبو او بي رحمه عسکرو په همداسي حالت کې چې جامي مي په تن نه وي کشولم، او الوتکي ته یې پورته کړم،

لاسونه او پښې يې راته په ځنځيرونو کلک وتړل، او سترګي يې راپلستر کړي، او يوه بده کرغيړنه توره کڅوړه يې په سر راواغوستله، سرونه يې په غاړه پوري پلستر کړې، او دچورلکی په منځ کې يې په تخت پوري بيا په ځنځيرونو وتړلم، ساه مي بنده شوه، رڼغ مي ترخوله نه خوت ، او کله چي به مي له ډېر تکليف او نفس تنګی څخه غير اختياري لړ حرکت هم کاوه، د کلکي لغتي ګوذار به مي خواړه، خو داګوزار راته هيڅ هم نه معلوميده، او دا هغه حالت و، چي ډېر ځله به مي په زړه کې ګرځيدل، چې همدا به ځنکدن وي، او په دي مي تسلي کوله چې ګوندي په هم دي حالت کې مي له بدنه روح جلا شي، او دراتلونکي بي عزتيو او تکاليفو څخه به خلاص شم، خو زما دا هيلي په ناهيلي بدلي شوي.

هم داسي کش مکش، وهل، چيغي وي، او زما هم دغه حالت وو، خداي (ج) عالم دي چې څومره وخت به تير شوي وي، چې يو ځاي چورلکه ښکته شوه، او ما به په زړه کی تصور کاوه چي ګوندي تردي حالت څه هوسا شم، خو وحشي ځناورو بيا هم په داسي بي رحمۍ کشولم، او تر چورلکی لاندي يې وغورځولم، او هلته نور عسکر هم ورسره ملګري شول، او تقريباً يو ساعت به يې همداسي لوبه راباندي کوله، چې اخر څلور پنځه نفره سربېره راباندي ناست و ، او خپل مجلس يې کاوه!!! لکه په يوه ډبره يا لرګي چی ناست وی، او زه به هميش دمرګ په انتظار وم، چې کله به مي ساه خيژي، او کله به عزرائيل چمبې راباندي ايږدي، اي پاکستانه !

تقريباً دوه ساعته دلته وم او بيايې کش کړم، او يوي بلې چورلکی ته يې پورته کړم، چې نسبتاً هغه مخکې او دتيرې چورلکې حالتونو ته هوسا و ، داوسپني په چوکۍ يې ټينګ وتړلم، خو وهل نه و ، تر لږ تګ تقريباً شل تر پنځويشتو دقيقو وروسته کښته شوه، او بيرته همدغسي

یی کش کړم، تر ښه ډیره حده او بیایې پر پښو ودرولم، چې ډېرو الوتکو او خلکو اواز مي تر غوږو کیده، او دیوه ترجمان په واسطه راته وویل شو ، چې پښه کښېنته کړه، پښه مي کښېنته کړه. زیني وي، په دا راز زینو کې شپږ پوړه کښېنته کړل شوم، او هلته یې هغه توره کڅوړه له سره راڅخه وکښله، او سترګي مي وغړولې ومي لیدل چې څو امریکایې عسکر مي مخ او شا اودواړو خواوو ته ولاړ دي، او چپ طرف ته مي وکتل چې قفس غوندي ځاي و، او انسانان پکښې پراته دي، لاسونه پښې یې را خلاص کړې، یو کوچني حمام و، هلته یې رهبري کړم چې ځان پرېمینځم، ځان مي نشواي پریمینځلاي، لاسونو مي کار نه کاوه، بې حسه وه، خو بیا هم اوبو ته ودریدلم، ځان مي لوندکړ، او بیایې یوه دریشي راکړه چې وامي غوستله، او هم دلته یوي کوچنۍ کوټې ته رهبري شوم چې نیمه قفس غوندي وه، تقریباً یو متر یې براو دوه متره اوږدوالي یې درلود، کموډ او داوبو ځاي هم دلته موجود و ، نور هیڅ پکښې نه وه ، یواځې داوسپنې جال او دیوالونه و ، او راته وویل شول که ویده کېږې نو ویده شه، خو دویده کېدو لپاره هیڅ نه و ، او زه په تحیر کې وم شاه و خوا مي کتل نه پوهېدم چې چېرته یم، او څه به راسره کېږي، ویښ او که ویده یم، دا حقیقت دي، که یې په خوب کې وینم

## په کښتۍ کې حالات

- یو عسکر دخوني مخ ته ولاړ و، چې کله ښه ځیر شوم، نو دا یو بیخي بند ځاي و، یواځې دري نوري کوچني کوټې وې، او یو ددوا ځاي و، چې موظف نرس به همیشه ورسره ناست و، یوه دروازه یې درلودله چې واشرونو چاپیره کړي وه، او د اوبو مقاومت یې هم درلود، دلته پوه شوم چې دا به هم هغه کښتۍ وي چې دوي یې دافغانستان دجنګ لپاره استعمالوي، او مونږ یې لاندي په شپږم پوړ کې وو، خو بیایې دسهار، ماښام په حرکتونو او د ماشینونو په لوړ زږغ چې کله به یې حرکت کاوه مطمئن شوم، چې دا هم هغه کښتۍ ده.

- سترګې پردي چې ډیر سخت وېرېدم، او ډیر لږ مې سترګو ته حرکت ورکاوه، او ژبه خو مي په تالو پوري وچه وه، خو بیا هم دځینو شیانو سوچ مي په مغزو کې ګرځیده، چپ طرف ته کوټه څه غټه معلومېده، او بندیان هم پکښې معلومیدل، دا مې درك کړه چې ځیني ورونه به هم دلته وي، سهار د ډوډي په ورکولو ټول ولټیدل او پوه شولو، چې یو بل ورور هم راغلي دي، خبري مو نشواي کولاي، یواځې مو سره لیدلاي شواي، هغه په داسي طریقه چې یو یو به د ډوډي په پلمه دکوټي له کونجه په غلا راته کتل، او ما به هم ورته کتل، وروسته تر دوو ورځو راته معلومه شوه چې ملا فاضل محمد، نورالله (نوري) صاحب، برهان، وثیق صاحب او غلام روحاني هم دلته دي، خو بیاهم ونه توانیدو چي خبري سره وکړو.

د سبا په را رسیدو سره دخنګ راسته طرف خوني ته یواځې دولچکو په استخدام یووړل شوم، او دتحقیق لومړی مرحله شروع شوه، ټولي

ګوتي ولګول شوي، ورغوي او خپړي مخ او شا او دواړه طرفو عکاسي وشوي، او بیوګرافي ولیکل شوه، نوري پوښتني و نه شوي، بیرته هغه خوني یا قفس ته بوتلاي شوم چي مخکي پکښي وم، ومي موندل چې څه شیان په کښي زیات شوي دي، لکه دمریضانو یو کوربچه (توشک)، یو توس، په پلاستکي سپینو قابو کې خوراك راغلی و ، چې پکښي یوه هګي او څه نیم پوخته وریجي وي، د ډوډۍ مي لږ څکه وکړل، او بیرته مي قابونه عسکر ته وسپارل، وروسته مي دځه استراحت تکل وکړ ، خو وروسته له لږ استراحت چې خوب وړی وم، دعسکر په ژغ او دولچکو په شرنګ ویښ شوم، او بیرته هغه دتحقیق خوني ته یووړل شوم.

دتحقیق په دویمه مرحله کې لږ پوښتني وي، چې دشیخ اسامه او ملا محمدعمر په هکله وي، چیري دي؟ څنګه دي؟ چیري و ؟ او څنګه و ؟ او عام طور دطالبانو دچارواکو په اړه چې څنګه شو ل؟ او چیري ولاړل؟ او یوه پوښتنه چې ډېره مختصره وه هغه د کال ۲۰۰۱ دسپتمبر د ۱۱ واقعي پوښتنه وه، چي ته به علم نه پرې لري؟ یا به دي څه نه وي اوریدلي؟ البته دا هغه مقصودي پوښتني وي، چې لومړی واریې دوي په لټه کي و ، او غوښتل یې چې ورباندي پوه شي، که څه هم دوي په دې سره ښه پوه و ، چې په داسي واقعاتو کې دده لاس نه و، او علم یې هم ورباندي نشته او تر اوسه پوري هم شاید څوك پوه نه وي، چي څه وشول او چا وکړل او د چا لاس پکښي و، په زرګونو خلك بي عزته شول، په زرګونو مسلمانان شهیدان شول او په زرګونو مسلمانان بندیان شول، تر اوسه هم دغه لړۍ روانه ده، خو ددي پیښي یو ریښتني عامل هم محکمي ته وړاندې نه شو او دامریکا ملت ته هم دقناعت وړ جواب ورنکړل شو، یواځې بي مفهومه هوایې تهمتونه او بي قانونه سلوك او معامله تر سره کیږي، دترووریست نوم دامریکایانو لپاره یو ښه فولادي

سوك دی، هرڅوك چې وغواړی غاښونه يې ورته مات كړي، په دغه سوك يې وهي چې اوس دغه عادت نورو هرو مملكتوته هم پراخه شوی دي، ټول نيول، خوشې كول، تحقيقات او ... روان دي.

څلور پنځه ورځي ورځني تحقيق يو ځل ، دوه ځل كيده، اړين سوالونه كيدل، خو ښه خبره زما لپاره داوه چې په دې پنځو ورځي كښې وهل نه وو او شديد تهديد او سزا هم نده راكړل شوې، خو تبعاً په داسي تنګ ځاي كي دژوند له اړتياووپرته ژوند اسانه نه دی.




## له کېښتۍ
## څخه بګرام ته انتقال

پس له پنځو یا شپږو ورځو بیا هم دسهار له ناشتي یا ناری، وروسته خړ رنګ یونیفورم راکول شو اوراته وویل شو چې زوړ یونیفورم په نوي تبدیل کړم، او تر بدلیدو لږ وروسته انتقال شروع شو، چې لومړی یې دچپه طرف دخوني ورونه انتقال کړل، لاسونه او پښې مو په پلاستکي تسمو وتړل شول او په سرونو سپیني خلطي را واغوستلی شوې او لدي سره جوخت دخلطو خولي دبندیانو په غاړو پوری پلستر شوي، په هم داسي ترتیب سره اخري نوبت ماته ورسید ، زما یې هم لاسونه او پښې محکم راوتړل او سپینه خلطه یې په سر راواغوستله او دلاندي شپږم پوړ څخه یې بېرته دکېښتۍ سرته راوړم او له هغه ورونو سره یی یو ځای کښېنولم چې ترما یې مخکي یې را ایستلي وو، پنځه افغانان چې ما یې نومونه مخکي یاد کړل، دوه عرب او یو امریکایې مسلمان و، او نهم یې زه وم، دیادوني وړ ده چې زما او دنورو ورونو په یونیفورم کې فرق یواځې په رنګ کې وو، زما یونیفورم خړ او ددوي ابي یا اسماني رنګه وه.

تر ډېره دکېښتۍ پر سر پټې سترګي او کلک تړلي ناست او پراته وو، چا به اوبه غوښتي چا به دلاس او پښو له دردو فریاد کاوه، چا به چیغي وهلي چې دخدای لپاره ساه مي بنده شوه مړ کیږم، نفس مي وخوت ، خو څوك مو پیدا نکړل چې درد مو دوا کړي، یا اوبه راکړي، اویا دانسانیت خبره راسره وکړي، یواځې دعسکرو چیغي ناري چې په انګریزي ژبه به یې وهلي (shut up and stop movement) خبري مه کوي، او حرکت ودروي، او دچورلکو اوازونه ترغوږو کېدل ، دوه، دري

ساعته هم دغه حالت و، او بیا په هلي کوپتر کي وتړل شولو او یوه بل ځاي ته انتقال شوو، چې تقریباً ٢٥ دقیقي به چورلکې مزل کړي وي.

دهلي کوپتر څخه کښته کړل شولو او هلته په یوه ځمکه وغورځو ل شوو، چي خاوره اومټ وه او شاوخوا عسکر ولاړ وه، کله به یې په لغتو وهلو او کله به په سرو او لاسونو او په پښو راختل، زموږ لاسونه شاته تړلي وه او ځیني عسکر به دعسکري سختو بوټو په تلیو زموږ دلاسونو ګوتي په ځمکي پورې موښلي، چې سخت به یې خوږولو!!!

په همدغه حالت کې ما خپل ورونه ولیدل او دټولو ورونو هم داسي حال وو، دا ځکه چې یو امریکایي جنرال غوښتل ما ووینې، هغه خلطه یې له سره راڅخه پورته کړه او بې له کوم سوال او جواب نه یې زه وکتلم او بیرته یې خلطه په سر راواغوستله، تقریباً دوه دري ساعته همدلته انتظار وو، نه لمونځ اونه دڅښلو اوبه وي، اودس خو لا پر لویه لاره پریږده او نه مو په اشاره سره لمونځ کولاي شواي، ځکه په مجرد حرکت سره به مو دلغتي سخت ګوزار ته ځان اماده کاوه، څو یې دخالي چاي جواب لپاره ولاړ کړو چي هغه مو څه لږ دمه راته جوړه کړله څو ځلي الوتکي کښیناستي او پورته شولي، بالاخره دشپي په شروع کیدلو سره، یوه الوتکه کښیناسته او موږ ته ډیره نږدي راغله او موږ یې ور پورته کړو.

دالوتکي انتقال د پل صراط یوه لاره او دځنکدن یوه صحنه وه، چي زه یې اوس هم نشم تصور کولاي او همیشه به په ګوانتانامو کي دي ته اندیښمن وم، کچیري بیا مو انتقالوي څنګه به یو او څنګه به مو انتقال کړي.

په الوتکه کې یې کلک په پښو او سینه باندي وتړلو او پلنې پټۍ یې په ورنونو او پر سینه راواړولې او ټینګي یې د الوتکي په نورو برخو

پوري محکمي کړلې، چې موږ نیمه پراته او نیمه ناست وو، نه سم څملاستلی شوای او نه کښیناستلاي شواي او دملا هډوکو به مودومره سخت درد کاوه، چې بیخي مو طاقت نشو کولای، خو بې له صبره مو بله لاړ نه درلودله. کله به مو یو، او بل ته تکیه ورکوله، خو دبي رحمو عسکرو دلغتو په ګزار به بیرته سره جلاکیدو. که به څوك دچاي جواب نه هرڅومره په عذاب هم شو نو چا به یې ږغ نه اوریده او ترجمان هم نه و، او که به وو نو ږغ به یې نه کاوه او دعسکرو سره په ژبه هم تول نه پوهیدل او که به پوهیدل نو له ویري به یې ږغ نه کاوه، نه اوبه او نه پوښتنه او په ډیر تکلیف به مو ساه ایستله، خو که چیري به یو کوچني سوري هم پیدا شو او تازه هوا به مو خولي ته راغله نو دا به موږ ته لوي غنیمت و، په لاري دوه ځله الوتکه کوزه شوه او بیایې پرواز وکړ تر ډیر وخت وروسته یو ځاي کښیناسته دا دبګرام هوایې ډګر و.

## بګرام ته رسېدل

زه عسکرو د الوتکي له رسیو خلاص کړم، دالوتکي لاندې په سیمنټو یې په ډېره بې رحمي وغورځولم، څو تنو عسکرو ناري وهلي او په انګریزي ژبه به یې ویل:
(This is the big one) یعني دغه یې لوي دي او دلغتو، سوکانو په وهلو یې شروع وکړه، ځیني دکنداغونو ګوذار مي هم محسوساوه، جامې مي له تنه جلا شوي، یواځې مي هغه خلطه په سرکي وه او ولچك او بیړۍ مي په پښو او لاسوکي وي، تازه واوره اوریدلی وه، له یوساعت وهلو وروسته یې بربنډ هغي واوري ته وغورځولم، امریکایې عسکرو ناریبه و او ښځو به غزلي ویلي، کله به یې لوبي راباندي کولې او دشعرونو یوه ټوټه زما تر اوسه په ذهن کې ده، چې ډیره به یې تکراروله، «امریکا دعدل او انصاف کور دي او دعدل او انصاف طرفداره ده، د هر چا لپاره عدل غواړي،» څکه دوي دځان لپاره له مسلمانانو سره داسي وحشي سلوك او بې رحم عمل عدل او انصاف باله، نو ځکه به یې دا شعر مکرر وایه، که نه داسي عمل په هیڅ قانون کې عدل نه بلل کیږي، او نه دغسي وحشي اعمال څوك تاییده وي، ډېره سخته یخني وه، هیڅ طاقت مي نشوکولاي او له ډېره شدید یخه به مي بې له اختیاره بدن ریږدیده او دوي به چیغي راباندي وهلي چي حرکت مه کوه او حرکت ودروه (stop movement) او دحرکت دریدل کله هم زما په اختیار کي نه و ، بالاخره وروسته تردري، څلور ساعته دسخت یخ له امله بې هوښه شوم او نور په ځان نه یم پوهیدلي، کله چې په هوښ راغلم او سترګي مي وغړولي، په یوه لویه خونه کي وم چي دلمر وړانګي پکښي ځلیدلي، تقریباً دورځي ۹ یا ۱۰ بجي به وي خو بیا مي بدن

دومره سخت درد کاوه چي هیڅ مي طاقت نشواي کولاي او نه یې زما بدن برداشت کولي شواي.

مخ ته مي نظر وکړ چې دوه لوي عسکر چې توري کڅوړې یي په سرواغوستي دي، دشپانه غوندي دوه لوي ډانګونه یې په لاسونو کي دي او زما طرف ته دګوزار په انتظار ولاړ دي او چپه او راسته طرفته مي دوه نور ددیوانو غوندي تورحبشي عسکر چه بي حده لوي پنډ او په غوښو سیخلي و، لویې لویې تورې شونډې لکه دغټو اوښانو تیار لکه دنکلونو دیوان ولاړ وه، او تومانچي یې په لاسونوکې وي او زما سرته یې نیولي وي، اودوه نورو عسکرو بیا شل د زی ټوپك په سر رانیولی واو ټولو په یوه لوړ اواز دري شیان پوښتل



چیري دی اسامه؟

Where is osama

او چیري دی ملا محمد عمر؟

Where is mulla omor

او تا دنیویارك او واشنګټن په پیښو کي څه وکړل؟

what did you do in Newyork and Washengton

او زه ددوي په مابین کې بربنډ پروت ومه، څه عدل او انصاف دی، خو څومره چې دوي چیغي او ناري راباندي وهلي ما دځواب طاقت نه درلود او نه مي خوله ښورولاي شوه ځکه غاښونه او ژامي مي یخي وي او ژبه مي په تالو پوري ټینګه نښتي وه، خو یواځې به مي دا درك کولاي شو چي اوس وخت دوهلو او د وژلو دی ، مرګ ته مي ډېره بېړه کوله، له ډېره سختنه عذابه او له تحقیري سلوکه، الله (ج) دي یې په نافرمانی کې نه شمیري، کله چي دوي یوه شول، چی خبري نشي کولاي او د ځواب طاقت نلري، څو شیبې یې پریښودلم او بیایې یوه شنه اسماني رنګه

ډریشي راواغوستله، چي له سره ترنوکانو پوري یوه تیکه وه او دوو عسکرو کش کړم او په یوه نږدې خرابه کي یې وغورځولم، چي ډېره یخه وه او بې له دغو جامو بل څه نه و دویم ځل بیا بیهوښه شوي وم او کله چي مي سترګي وغړولې په یوه بړستنه کې پیچلي وم لکه مړي، سر او پښي مي تړل په دغه بړستن کې پټ و ځان ته مي لږ حرکت ورکړ، لاس او پښي مي ټینګ تړلي و او په ډېر تکلیف مي سر تر بړستن و وېست، شاوخوا مي سترګي وغړولي یواځې کوچنې نږدې کوټه وه، دروازه یې نه درلوده او امریکایې عسکره په دروازه کې ناسته وه، عسکره امریکایي ښځه وه نژدي راغله، په نرمه لهجه یي وویل: څنګه یې او څه ته ضرورت لري، دالومړی ځل و، چې ما له امریکایې عسکرو انساني ډوله ږغ واورید . بیا هم مي دځواب توان نه درلود، خو دي ښځې بیا هم خبره تکرار کړه چي په انګریزي پوهیږي؟ او بیا هم ما ژبه نشواي خوځولای او عسکره بېرته دروازي ته ولاړه او پرخپله چوکي کښیناستله، تر ډېره حده مي فکر کاوه چې دا به ګوانتانامو جزیره وي، او اوس به زه هلته یم او دا مي یقین و خو کله چي مي دخوني دیوالوته نظر وکړ ډېر زاړه واو په پښتو ژبه دطالبانو یادګارونه پر ې لیکلې و او دیادګارو سره تاریخونه هم لیکل شوي و ، بیرته مي دا یقین شو، چي دا ګوانتانامو نه ،بلکي افغانستان دی خو بیا هم نه پوهیدم چې په افغانستان کې کم ځاي دي، مازدیګر وو، دټولي ورځي لمونځونه مي په نس خوړلي و او تر اوسه زما په اند یوه ورځ او شپه تیره شوي، ډوډۍ یا اوبه مي نه دي څکلي او بیهوښی خولا خوب راپوره کړي وو، ټولو هډوکو مي ډېر سخت درد کاوه، سر او وږي مي عسکرو په وهلو کي رامات کړي و او بدن مخ مي په وینو لړلي وو او په ډېر حیرت کې وم، چې نوربه څه کیږي او دابه مي ډېر ویل یا الله ته راځخه راضي شي، ته

نور ورونه په خپل حفاظت کي وساته او بل هيڅ مسلمان زموږ په رنګ ذليل امتحان کي مه واقع کوه. خاصتاً علماء کرام او نور معزز ورونه ځکه ددوی بی عزتی دټوله مسلمانانو بی عزتی ده، اي ربه! ته دافغانستان دمظلوم ولس په حال ورحميږه او خپل ددين حفاظت دخپل دنصرت په نازلولو سره وکړه، او داسي الفاظ به مي دهري سختي په ځاي خولي ته راتله ، الله (ج) دي قبول کړي.

ماښام شو تياره خپره شوه، دبرقي ماشين ژغ مي ترغوږو شو او يو ګروپ دخرابي دروازی له مخ سره روښانه شو. خونه يې روښانه کړه، ژبه مي لړ وښوريده او موظفی عسکري ته مي په ټيټ اواز وويل:

(can you help me) يعني کمك راسره کولي شي؟ او هغي په جواب کې راته وويل: (what do you need) څه ضرورت لري؟ ما دلمانځه د ادا کولو اجازه وغوښته او اجازه يې راته راکړه. لاسوته مي حرکت ورکړ ، په ترلي لاسو مي تيمم وواهه او په ناستو مي لمانځه ته شروع وکړه.

ما لا لمونځ نه وو سرته رسولي چې دوه نفره خوني ته راننوتل او دخوني په کونج کې کښيناستل ما لمونځ ادا کړ هېر ويريدلم چې اوس مې له لمانځه څخه کش نه کړي، خو بيا هم خداي ج رحم وکړ.

## په بګرام
## کې دتحقیق مرحله

له لمانځه وروسته مي مخ دوي ته واړاوه یونفر په عسکري او بل په ملکي جامه کې ناست دي ، راته ویې ویل: چې څنګه یې؟ خو په فارسي ژبه سره، چې هغه نفر چې په ملکي جامه کې وه فارسي ژبی و او ژبه او لهجه یې ایراني لهجی ته ورته وه. نیمه ږیره یې درلوده، تیتهه ونه او غنم رنګه سړي و، دغه سړي اصلاً امریکایي و ، خو په ایران کې لوي شوي و ، فرید (Freed ) یې نوم و. او هغه بل تور غټ سړي امریکایي غوندې ښکاریده، والله اعلم.

دې دوو نفرو راڅخه وپوښتل صحت دي څنګه دی ؟ ډوډۍ دی خوړلي ده؟ یخ خو به دي نه وي شوي؟ ما به ورته ویل الحمدلله او بس نه مي د واقعاتو شکایت کاوه او نه مي څه غوښتل، دبدن اومخ ویني مي دوي لیدلي وروسته یې پوښتني شروع کړي چې ډېري پوښتني یې په اسامه او ملا محمد عمر متمرکزې وې، څرنګه چې زه دهغوی له مرګ او ژوند څخه خبر نه وم ، تبعاً جوابونه منفي و ، دې منفي جوابونو ددوي دمخونو رنګونه بدل کړل او له اثارو څخه یې غصه او قهر معلومیده او خبری به یې وار په وار سختولي او تهدیدونه یې وړاندي کول ، خو زما سره بیا هغه ځواب و، او بس شپږ ورځي تیري شوي، ما ډوډۍ نه ده خوړلي، ځکه چې عسکري ساتل شوي دکلونو ورسته خواړه خومي یو زړه ته نه کیده اوبل په دي هم نه پوهیدم چې حلال به وي او که نه، دشپږو ورځو وروسته مي نیمه افغاني ډوډۍ دمحقق له لاري پیدا کړه، دیو ګیلاس چاي سره، او بیا وروسته به یې هره ورځ یوه یوه

افغاني ډوډي راکوله، قریب تر یوي میاشتي پوري په همدغه خرابه کې وم او موظف عسکروته امر شوي وو، چې خوب ته مې پرې نه ږدي
تقریباً تر شلو ورځو پوري همدا حالت و، لاسونه او پښې مې ټینګ تړلي و ، نه د ډوډۍ په وخت او نه دبل ضرورت لپاره خلاصیدل ، همدغه دوه محقیقین به هره ورځ راتلل ، او پوښتني به یې راڅخه کولي، دبې خوبۍ لړي دوام درلود، یواځې وم، نه مې څوك لیدل او نه مې څه اوریدل تر شلو شپو او ورځو وروسته مې یو وړوکي قرانکریم وموند، چې هغه ایراني ژبې محقق راته راوړ.
له هغه سره مصروف شوم، نو بیا هم ډېره یخني وه او کله خو به مو توس هم پرځان نشوای برابر ولاې، ځکه لاسونه مې ټینګ تړلي و.
یوه ورځ سهار وختي ، تقریباً دکال ۲۰۰۲دجنوری ۲۴یا پنځه ویشتمه سهار و، او داتو یا نهو بجو وخت و، چې ناڅاپه یوبل بندي زما دغه کوټې ته راوستل شو، بل راوستل سو تقریباً شپږ کسه راغلل او ټول مضبوط تړلي و او په سرویې توري برنکلاوي خولي اغوستي وي، یواځې به یې دوي سترګي دبرنکولا له سوریو معلومیدي، دخوني په کنجونو کې سره کښېنول شو او یو دوه عربي ژبې محققین هم ورسره راغلل او په عربي ژبه یې ټولوته وویل: پام خبري ونکړئ، دروازي ته یې یوه لویه تخته کښېښودله او دوه عسکر مسلح دننه په کوټه کې د تختي شاته کښیناستل، یو ساعت چوپتیاوه، خو دا چوپتیا دخبرو په کولو سره ماته شوه، خبري شروع شوي او دیوه او بل پوښتنه وشوه، زه بیا هم چوپ وم، خو عسکرو چې څومره ویل چې خبري مه کوي، دومره خبري زیاتیدلي او عسکرو هم په لوړ اواز څه نه ویل، بالاخره هغه عربي ژبي محقق راغی کوشش یې وکړ چې خلك غلي کړي، خو ونه شول، ما ته هم یو عرب ورور ویل ته ضعیف نه یې؟ ما ورته وېل بلي، بیا دغو شپږو

وروښو ټولو خبري راسره وکړي او ځانونه يې راته معرفي کړل او ما ته يې تسلي راکوله، په هغوي کې دغه شپږ نفره وه، سالم سقر، سلمان ديمن، شيخ فيض دکويټ، ثمير دالجزائر، طارق چې اصلاً دالجزائر و خو دانګلستان تابعيت يې درلود ، محمد قاسم (حليمي) دافغانستان و، خبري ځکه شروع شوي چې مونږ هم دلته له چا څخه دغلا په ډول پټ کړل شوي وو او دوي نه غوښتل چې په مونږ څوك خبر شي او موږ په زړه ورتيا سره خبري ځکه کولي چي مونږ پوهيدلو چی دوي اوس څه نشي ويلاي، مونږ به هر ګړی پوښتنه کوله، چې ولي په موږ پسي دروازه بنده ده؟ ولي موږ ټول په يوه خرابه کې يو؟ په جواب کې به هغوي ويل: چې دلته بيخي بد خلك راځي که تاسي ووينې وژني مو، نو ځکه مو دلته پټ ساتلي ياست چې هغه مو ونه ويني، خو مونږ پوهيدلو چې دروغ وايې، او خبره بله ده.

ترمازيګره پوري هم دلته وو، بيرته يې شپږ واړه نفر بوتلل او زه يواځې پاته شوم، خو دغه ورځ ما ته تر نوروټولو هغو ورځو دخوشحالی ورځ وه، چې زه پکې نيول شوي وم.

شپه تيره شوه، په سبا بيا هم هغه شپږ نفر راوستل شول، زه ډېر خوشحاله شوم، ښه راغلاست مي ورته ووايه اوهوروسته مي ځيني پوښتنه وکړه، چې تيره ورځ څه پېښه وه؟ ځکه دغه وروښو دنورو بنديانو سره يو ځاي ژوند کاوه، هغوي راته وويل: چې تيره ورځ د سره صليب استازي راغلي و، خطونه يې ټولول چې موږ او تاسي يې له هغوي څخه پټ کړي يو او نن بيا هغه نفر راځي، خو امريکايان نه غواړي چې دسره صليب استازی زموږ سره ووينی او زموږ په دغه کوټه ياخونه کې دساتلو غرض هم دادي نور نو مونږ نه پوهيدلو چې ولي يې موږ دسره صليب له کميټې څخه پټ ساتلو، تر مازديګره مو ښه مجلس سره وکړ ،

په همدې دوو ورځو کې ډوډۍ کافي راکوله شوه، دا لومړۍ ورځ وه چې دنیولو وروسته زه په نس موړ شوم او خبري مي هم وکړي او حلیمي صاحب مي هم په دغه ورځ وپېژنده ، هغه وخت چې خپل مخ یي راته ښکاره کړ، مازدیګر شو بیرته یې نفر خپلو ځایونو ته بوتلل، زه او خپل خراب دیوالونه پاتې شولو، دخرابی دروازه هم بادته مخامخ وه، دیخ زور پرې رسېده، دخوني په منځ کی به یخ باد لګیده، په دیوالو بهٔ یې ښه انعکاس کاوه.

دوي ورځې وروسته یې لاندي منزل بلي خوني ته بوتلم او هلته حلیمي صاحب او سالم سقر هم و ، موږ خبري سره کولي، دسالم ورور قصه مي تر اوسه په غوږو کي ده، چې داوښکو په ډکو سترګو به یې راته کوله، ویل: دویل یوه کوچنۍ لور مي وه چې تازه پر خبرو راغلي وه، دکندهار په ښار کې مونږ دپنا ځاي نه درلود، کله یو ځاي او کله بل ځاي به له بمبار څخه تښتېدلو، یو سهار وختي ډېر سخت یخ و، او د ي ماشومي به په ژړا ژړا ویل: (ابي برد) یعني پلاره یخ دي، او ما هیڅ نشول کولاي او دي ماشومي به بیا هم دغه تکراروله ما او مور به یې سم ورسره ژړل ، ده ویل: میرمنه مي ښیرازه وه، دانتقال په وخت کې به ډېر په تکلیف وه، ښار نه وو نیول شوي ما خپل بچیان چمن ته ورسول، زما ښځه او نوري عربي ښځې راسره وي، کله چې تر افغانستان وتلې نو د افغانستان خاوره یې په پلوونو پوري تړله، ما ځیني پوښتنه وکړه، چې پر دې څه کوئ؟ هغوي ویل: بیا به موږ افغانستانووینو او که نه، د افغانستان مقدسه خاوره دجهاد خاوره ده او دالله (ج) ددین دنافذیدو یوازني پاتي ځاي دی، خو دي دهغو بچیانو په احوال ناخبره و، چې پاکستان به ورسره څه کړي وي. دري ورځې مونږ دري واړه سره یو ځاي وو، په اخره ورځ یوه بل ځاي ته انتقال شولو، شپه شوه حلیمي صاحب یې تحقیق ته

بوت ، دماسخوتن لمونځ مو وکړ ، وروسته عسکر راغلل ویل یې چې تاسو لاندي بیاېو ، یعني زه او سالم چې کله لاندي بوتلل شولو نور وروڼه موهم ولیدل چی لاسونه اوپښی یې ټینګ ورتړل دانتقال غوندي ښکاریدل

قریب شل بندیان کښینول شوي دي، لاسونه او پښي یې ښې کلکې تړلې وې توري لوغړني کڅوړي یې په سرونو وراغوندي، چې دا علامه دانتقال وه، چې چیرته به یې انتقالوي والله اعلم

## کندهار ته انتقال

په ډېر تلوار سره عسکرو لاسونه او پښې نورهم محکم راوتړل او په سرېې هغه توره کڅوړه راواغوستله او پر زنګنونېې کښینولم،زما سر يې دبل بندي پرشاه تکيه کړ او هم دارنګه يې زما شاه ته بل بندي کښيناوه او سرېې زما پر اوږو راتکيه کړ، تر يوه ساعته هم داسې کش مکش شروع و، او وروسته يې يو يو ولاړولو او يو دبل تر شاه ته يې قطار درولو او په يوه نري ټينګه ليلوني رسۍ يې متې سره راوتړلې، لکه اوښان سره قطار يې کړو، عسکرو به رسۍ يو طرف بل طرفته کشوله، چې دهر ځل کشولو په وخت کې به دټولو بنديانو چيغې ترغوږو کيدلې، ځکه چې ډېر سخت به خوږيدل او ليلونې رسۍ به مو پر بازوګانو نوره چسپيدله، خوتر ډېره حده قصداً کيدله، ترڅو موږ وځور وي، ددغه قطار په وروښو کې دنافع په نامه يو سوډاني عرب و، چې په دواړو پښو زخمي و، ډېري سختې چيغې به يې وهلې او سخت په عذاب و، نو عسکرو ددې پر ځاې چې کمک راسره وکړي ناري او چيغې به يې راباندې وهلې چې چپ او ږغ مه لرئ، خو بيا هم له ډېري سختۍ ډېر فريادونه اوريدل کيدل ، يوه ورور چې امين الله نوميده دتوبې اوسېدونکې و، او فعلاً په چمن کې اوسېدې هم په دغه قطار کې و، چې بيا يې په کندهار کې راته وويل چې ما په دغه وخت کې يقين کاوه، چې اوس مو دحلاليدو ځاي ته بيايې او حلالوي مو، خاصتاً په هغه وخت کې چې يو عرب ورور چې زخمي و، له ډېري سختۍ څخه به يې زګيروي کاوه، او خرهار يې شروع کړ، امين الله ورور ويل چې زما يقين شو چې هغه يې حلال کړ او اوس زموږ نوبت دې، نو له ځان سره مې

دشهادت کليمي شروع کړي. او ما هم دډېرو ورونو اوازونه اوريدل چې په زوره زوره يې کليمي ويلي اوچا دقرانکريم دتسلي ايتونه ويل.

هم دا لټ او خريز شروع وو، په شاړه ځمکه کې يې روان کړي وو، کله کله به په ډبوکي ګوزاريدلو، تر څو يوه اواز ته نژدي کيدو چې دغتې الوتکي اواز و، ورو ورو هغه ځاي ته ورسيدو، دالوتکي لوړو اوازونو دورونو چيغي او ناري زما غوږو ته پري نښودي.

الوتکې ته نژدي يو په بل سره وغورځول شوو، لکه دلوي کور دباريدو په وخت کې تړلي غوټې او بيا يو يو الوتکې ته خيژول کيدلو، دننه په الوتکه کي کښينول شوو، او دالوتکي په تخت پوري ټينګ وتړل شولو، پر ورونونو يې پټې راوتړلي او دخټ لخوايې هم پټې وتړلې الوتکې پرواز وکړ، او دلږ وخت وروسته بيا هم دعذاب شکايتونه پورته شول، دلغتو په سخت ګذارونو سره به ځوابيدل، خو بيا هم مزل لنډ و، او وروسته تر يوه ساعته تقريباً الوتکه کښته شوه، خو دکښته کېدلو په وخت کي ډېر هوسا او ارام شولو، خلکو مخ ته زورکاوه، نو ملا به له درد نه لږ خلاصيدله تقريباً دکال ۲۰۰۲ دفبروری ۸ يا ۹ وه الوتکه کښته شوه، بيا يي يويو کښته کولو ترڅو ماته نوبت راورسيد، عسکرو کشولم او دکشولو په حال کې به يې په لغتو او سوکانو په نس، تشي او ورنونو وهلم، بيايې يو ځاي په ختو کې پرمخي وغورځولم او دا هم هغه ځاي و، چې نور ورونه هم پکښې غورځول شوي وه، ډېر سخت يخ و، ختې ډېري يخي وي او تر يونيفورم يې يخني اوچته احساسيدله عسکرو به سربيره خپله لوبه راباندي کوله، کله به سربيره راباندي کښيناستل، کله به يې په لغتو وهلو او کله به يې نوکاري لګولې، دکوچني لښتو او لرګيو په ګذارونو بالا، خو ښه خبره داوه، چې توري خلطي مو په سر پاتي وي چې هم يې مخ له ختو راته ساته او هم يې دنفس

تنګي په ساه مخ او سر تود راته ساتي، تر ډېره دمه دغسي حالت دوام درلود. یو یو نفر یې ولاړولو ترڅو ماته نوبت راورسید. دوو عسکرو په ډېر وحشي ډول راحمله کړله او له ختوېې پورته کړم او په تراټه یې ځغلولم او په تشي تشي کي به یې په عسکري لویو بوټو او سوکانو وهلم او بیا به یې پړمخي په ځمکه په ډېر قوت وغورځولم. ترڅویې پر یوه تخته پړمخي وغورځولم او څلور پنځه عسکره سربېره راباندي کښېناستل، لوې لوې رمباړې او ناري یې راباندي وهلي چې ونه ښوري، کالي یې په چړو او چاکوګانو راباندي څیري کړل. دومره به یې په سر او پښو باندي زورکاوه چې تر ډېره حده مو‌ږ فکر کاوه چې حلالوي به مو، زه هم په دغه حالت کې شکمن شوم چې اوس مو حلال نکړي، نو یقیني خبره خو داوه چې موږ تر ژوند په حلالېدو څو چنده خوشحالیدلو. او داسي توهینوونکي افعال هیڅ بشر نشوای برداشت کولی.

بیرته یې بربنډ له تختي څخه پورته کړم لوړیي ودرولم، خو له ډېره وهمه او سختیو مي یخ هیر شو اوګرمي خولي مي په بدن راماتي شوي او دومره یې زیات وموښلم اوویي مرووړلم چې شرمښ به میږ هم دومره نه ومرووړي.

تحقیق شروع شو دکامرو کړ پي مي هم ترغوږو کیده او رڼا یې هم دخلطي تر باریکو چولو سترګي بریښولي، عکاسي او تحقیق له بربنډو انسانانو څخه، خو دامریکایانو لپاره یوه میله او تماشا وه. یو دم یې خلطه له سره راڅخه لري کړه. ومي لیدل چې بربنډ ورونه هم ولاړ دي، څوک یې پرتختو ګوزارکړیدي، پر چا کالي شلوي او په چاپې اغوندي، دوارخطایې یوه فضاء وه چې زړونه سره چوي، دومره توهین چې زما ژبه یې تعبیرولي نشي، ښځي او نر ولاړ دي تماشا کوي، لویه غټه خیمه وه.

او ډاکتران هم پکښې موجود و ، چې بیایې طبي معاینه کوله، تحقیق عکاسي او معاینه خلاصه شوله بیرته یې دریشي راواغوستله توره کځوړه یې راپر سر کړه او په کشولو او ځغلولو یې یو ځای ته بوتلم، پړمخي یې وغورځولم لاسونه او پښې یې راخلاص کړل او کځوړه یې له سره را څخه وکښله، عسکر مي په سراو پښو ناست و ، لږه شېبه یې همداسي پریښولم او یو دقیقه وروسته یې دږغ راباندي وکړ، چې ولاړ شه، پورته شوم، ځان مي دخاورو او خټو څخه وڅنډه شاه وخوا مي سترګي ورغړولي، یوه لویه خیمه وه، په تختو سره یې څلور طرفه دیوالونه جوړ شوي و او څلور سره طرفونه یې له مځکي څخه تقریباً یو متر پورته وه، مستطیل غوندي جوړ شوي وه او بیا په دوه متري کې تقریباً دزخو او اغزو لرونکیو سیمانو په واسطه بنده او محاصره شوي وه، په هم دغه خیمه کې چې تخت یې په غټو تختو جوړ شوي و او له پاسه یې لوي ترپال و، تقریباً دشلو نفرو دمیشته کیدو ظرفیت یې درلود، چي ښه مي سترګي وپوولې ډېري هم دا ډول خیمي می ولیدلی او دنورو بندیانو ورونو څخه ډکې وي، موظف عسکر راته په اشاره هغه سامان وښود ، چې دهر نفر لپاره مځکي دننه په ترپال کې ایښودل شوي و، یو پټو و او په هغه کې دوه نازك توسان، یوه زیرپیراهني، یو جوړ جرابي، او بوټونه او یوه دسر برنکو لا (خولی)وه زیرپیراني مي واغوستل، جرابي مي په پښو کړي، برنکولا (خولی)مي پر سر کړه او په دواړه توسانو کي مي ځان وپیچه او له ډېري یخني څخه مې بیخي طاقت نه کیده، هغه نور ورونه چي تر ما وروسته پاتې و په همدي شکل تردي ځایه راورسیدل، تقریباً سهار ته به یو ساعت پاتي و، او ملا محمد صادق اخند هم دغې خیمي ته راوستل شو، هغه د اورزګان ولایت دبلاغ دکلي اوسیدونکي و، چې هغه وخت یې په چمن کې کور و، او په

افغانستان کې د شوروي ديرغل په وخت کې دجهاد دصدقيه جبهې پخواني قوماندان و، چې زموږ امير و، ما کالي ورته برابر کړل، دي سختي يخنۍ نيولي و، چې دکاليو دبدلولو په وخت کي يې ماته وويل ماته مه ګوره، حقيقت دا و، چې ما ده ته نه کتل او کومك مي ورسره کاوه، دده دا قصه مى هم په زړه ده، کله چې ملا محمد صادق اخند شا و خوا وکتل خلك يې په خيمو کې ويده وليدل چې ځانونه يې په توسانو کې پيچلي وو، ګومان يې وکړ چي دا خلك به مړي پراته وى، ما ته يې په تحير سره وويل: څومره مړى پراته دي ما ورته وويل: نه ويده دي خو يو ګړي وروسته په هره خيمه کې اذان شروع شو بيخي لګه په ښار کې چې سړي وى هر طرفته د اذانونو ږغ و، حاجي ملاصاحب ناڅاپه په لوړ اواز وويل: شکر الحمدلله داسلام کلي ته راغلي يو، او ډېر خوشحاله شو. خو امين الله ورور بيا ويل: خدايه کشکي مړه واي داڅه وحشي حالت و، هيڅ دهيرولو نه دي او نه دانسانانوپه څېر دي، خو ما به ورته ويل: چي الله ج مو دي تردي له بد ترو وساتي.

## په کندهار کې دتحقیق مرحله

سهار شو لمونځ مو وکړ او غوښتل مو چې یو ګړی دمه وکړو، خو دمي ته پرې نه ښودل شولو او دتحقیق مرحله شروع شوه، لومړې عرب ورونه تحقیق ته بوتلل شو ، که څه هم زه په دغه ورځ تحقیق ته بو نه تلل شوم، خو دنورو ورونو په بیولوکې مو ډېري ستونزې درلودلې، تحقیق ته بیول ډېر سخت او تحقیر امیزه وه، مثلاً کله چې به یې یو نفر تحقیق ته بیوه نو عسکر به ددروازې له خوا راغلل، ولچك او بیړې به یې په لاسو کې وه او په زوره زوره به یې ناري کړی ځئ پای ته ولاړ شئ، د خیمې ټول ورونه به پای ته ولاړل او نور عسکر به دپای لخوا دسیمي خاردار شاه ته مسلح ودریدل او دټوپکو خولې به یې دبندیانو طرفته نیوټلې وې او بندیان مکلف وچې پرزنګنونو ودرېږي او لاسونه شاته ونیسي، او هغه نفر چې تحقیق ته بیول کیدل مکلف و، چې پرمخې ځان په ختو او خاورو کې وغورځوي، لاسونه پر ملا سربېره تړلو ته اماده کړي، او پښې به یې جفتې نیولې وې، عسکرو به دروازه خلاصوله، په ډېر تلوار به داخلیدل دسړي پر سر او پښو به کښیناستل او لاسونه به یې شا ته ورتړل، پښې به یې ورته تړلې، توره لوغړنه خلطه به یې په سر وراغوستله او بیا به یې ویسته او دروازه به یې تړله، وروسته به هغه نورو بندیانو ته اجازه ورکول کیده چې خپلو ځایونو ته ورشي، همداسې به شپه او ورځ کیدل ، شپې او ورځې به سړي ارام نشوای کولای،په تیره چې به هغه نرې وچکې بې حیا ښځه وه چې ډېرتیزاووچ اوازیې درلودی او ډیرې سختې چغې به یې وهلې، تحقیق ته په بیولوکې یوه بله لویه ستونزه دا وه، چې ډېرو متعصبه عسکرو به خلك ډېر په تکلیف کشول ،

لاسونه به یې شاته کشوله اوسر به یې مځکې ته کښېښ کښېښي، زور به یې پرې کاوه پرځمکه به یې کشاوه او دسپیو په غپا به یې بدرګه کاوه، ډېر ځله خو زما دزنګنو غوښې په ځمکه تللي او هغه ټینګ پتلون به دمځکې دکشولو په وخت کې سوري سوري شو، او کله به یې سرونه له دیوالو او دروازو سره راجنګول ، په داسي وخت کې چې موږ به هیڅ نه لیدل ، سترګی به موټینګی تړلی وې او ځانونه مو هم ددوي په اختیار کې وو. سهار شو دسره صلیب مامورین راغلل او غوښتل یې چې مرکه راسره وکړي او د احوال معلومات راڅخه وکړي او په عین حال کې یې غوښتل زموږ بیوګرافي یاپیژنه له ځان سره راجستر کړي، سپیني فورمي یې راکړې چې کورونو ته خطونه ولیکو، دسره صلیب یوه مامور دسیمي خاردار هغه بل طرفته راسره ودریده، او دنیولو او وروسته دسلوك پوښتني یې راڅخه کولي، خو موږ تر ډېره شك کاوه چې دا به هم دامریکایانو یوه استخباراتي څانګه وي، ډېر به موږه نشواي ورته تشولاي او خبري به مو په ډېر احتیاط وړسره کولي، لکه تقریباً دمحققینو سره، خو بیا هم خبري ساده او بې سامه وي، دخطونو لیږل او رارسیدل به مو دځان لپاره غنیمت باله، تر ډېره حده خو به موږ دسره صلیب ناوسبي احساسوله او دبلې خوا مو دامریکایانو له غروره او تکبره پړسیدلې پالیسی دقانون له چوکاټه ډېره لیري بلله، خو بیا هم د سره صلیب دخطونو وړل او راوړل دستایلو وړ دي، چې موږ یې حداقل دخپلو کورونو له احوال څخه خبرولو، سره صلیب دخپل راجسترډ دهویت کارتونه راته راکړل او دنورو شیانو وعدي به یې کولی چې دامریکایې مقاماتو سره به خبره وکړي، لکه کتابونه، دوا ، ډوډی، اوبه او نوري دژوند اسانتیاوي، خو تر څو چې زه په کندهار کې وم په اخرکې څو دقصو کتابونه، دشطرنج تختي او په درومیاشتو کې یو ځلي

بې عزته بې حرمته بربنډ غسل ولیدل سو، خو نور څه پرمخ تګ نه ولیدل سو، موږ ډېر دمذهبي کتابو، داوداسه د اوبو، دبشر احترام غوښت، خو کله هم زموږ دغه ارمان ترسره نه شو. دکال ۲۰۰۲ دفبرورۍ له ۱۰ څخه بیا د جولای تر لومړۍ پورې په کندهار کې وم، مخ مو نه دی پریولی او نه مو لاسونه پریولي دي، یواځې دڅښلو اوبه راکولې، خو چې کله به مو مخ یا لاس په غلا سره پریولل نو سخته سزا به راکول کېده، خو دسزا له وېرې مو نشوای کولای چې مخ، یا لاس پریمینځو.

یو ځلې یې اوه اوه نفره سره تړلو یو بل ځای ته یې بېولو چې تقریباً څو متره یې له دغه ځایه مسافه درلوده، بیایې بربنډ کړو نه پرده وه او نه حجاب او نه بله ټوټه وه چې اقلاً عورت غلیظه ورباندې پټ کړو، دوې، امریکایې عسکر نر او ښځې شاو خواته راته ولاړو او یو یو سطل اوبه، یوه چکې صابون یې له اوبو سره ایښې و، چې ځان ورباندې پریمینځو، موږ لدې توهینوونکې غسل څخه ډډه نشوای کولای، مجبوره وو چې ځان یو دبل په مخ کې پرېمینځو، ما پر وروڼو ږغ وکړ، وروڼو صبر به کوو. موږ مکلف نه یو، خو لطفاً خپل سترګې یا پټې کې او یایې خپل مخ ته متمرکزې کړې دا هم د بې ابۍ غسل و، چې یو ځلې مو د کندهار په هوایي میدان کې وکړ، نور مو نه غسل کړې او نه مو مخ او لاس پریولی دي.

دویمه ورځ تحقیق ته بوتلل شوم، پوښتنې شروع شوې او په کندهار کې داد تحقیق دویمه مرحله وه، تحقیق په عارضي کوټو کې کېده چې ترپالو نه یې پرسر پراته و، خو د تحقیق طریقه تغیر شوه او مخه یې هم بلې خوا ته متوجه شوه بیوګرافي ولیکل شوه، پوښتنې شروع شوې، لهجه نرمه وه کوم تهدید نه و، اود تیرې ورځې سره یې خبرې نه مقایسه

کیدلي او دتحقیق دمیز شاته محقق او ددروازي سره نژدي ترجمان او ددروازي په وره کې مسلح عسکر ولاړ و.

د ملا محمد عمر او اسامه دبیوګرافیو اوپیژندلوپوښتني یې کولي او دمیز پر سریې په سور رنګه کاغذونو لیکلي، خو زه پوه نشوم چې سرو کاغذونو به څه معني درلوده، معمولاً دتحقیق خبري په دریو قسمو کاغذونو لیکل کیدي، لومړی ځل سور، څه وخت ورسته ژیړ، او په اخر کې سپین و، یو دوه ساعته تحقیق روان و، بیرته محققین ووتل او زه یې پرېښودلم، موظف عسکر راغلل او توره کڅوړه یې په سر راواغوستله او بیرته یې په یوه تکلیف هغه ځاي ته ورسولم چې زموږ داوسیدو نصیب پکې پاتي وو، څو ورځي هم دغسي حالت دوام درلود، او په همداسي توهینوونکي ډول سره به یې بیولو او راوستلو.

دکندهار محبس نسبتاً اسان و، او شرائط یې ډېر سخت نه وه، مثلاً په هره خیمه کې دشلو نفرو دمیشته کیدلو ظرفیت و، خو له لسو نه تر شلو کسان په کښې اوسېدل او دري نفره یو ځاي سره کښیناستلاي شواي او خبري به مو سره کولاي شواي، خو که به تردري نفره زیات کښیناستلو نو به یې سزا راکوله، لمونځ به مو په جماعت سره کولي شواي او تر خیمي چاپیر به دړو نفرو قدم وهلي شواي او سترګي به مو نسبتاً ازادي وي، دژمي موسم و، په دغه وخت کې به لمر ته هم کښېناستلي شواي، خو نور انساني عفت تر پښولاندي وو، په هره شپه کې به دشپي په نیمایې کې تلاشي راتله او لکه چا په چي وهي په داسي شکل به راځغاستل او په ډېر وحشي ډول او ټراټ سره او ډېري لویې لویې رمباړي به یې وهلي، چا به غپل، چا به غرړي کاوه، او چا به انګولاوې او غړومبي کاوه اوچابه دخره غوندی هرهارکاوه، او ټول بندیان چې تقریباً تر شپږ اوه سوو پوري یې شمېر رسیده له خوبه

ایستل، تول ورونه به یې پرمخې غورځول او بیا به یې یو یو پورته کاوه او تلاشي کاوه به یې، دخیمې بل طرف ته به یې غورځاوه او بیا به یې په زنګنو دراوه، سپي به یې غپول او دخلکو په سرو او ځایو به یې بویونه کشول، په همداسې بدرنګې به یې هره شپه دخوبه لټولو.

## په کندهار کې د ډوډۍ نظام

د ډوډۍ نظام عسکري وجبي، یا کڅوړې وې چې دامریکا حکومت له دویم جهاني جنګ وروسته دخپلو عسکرو لپاره جوړې کړي وې، اکثره به یې ایکسپایر هم وې یعني تر خپل ټاکلي وخت به اوښتي وې، غوښې او ترکاري به په کڅوړو کې پخې شوي وه، معلومه نه وه چې ذبحه شوي به وي که نه په خپکې به وژل شوې و . او کله کله خو به دخنزیر غوښې هم پکښې راتلې چې ډېرو ورونو به په ناخبرتیا سره خوړلې هم وې، ځکه چې ټول ورونه خو په نوشته نه پوهېدل خاصتاً په انګریزي ژبه، داهغه خوراکونه دي چې له ژښت ډېر وخت وراسته، بوي ناك، خوراکونه دي زموږ درسم، رواج او عنعنوي، دود څخه ډېر لرې دي او یواځې یې عسکر په جنګي حالاتو کې چې دنورو غذایې موادو رسدنه کېږي دمجبوریت له کبله خوري، خو دداسې شی خوړل دصحي لحاظه دانسان وجود ته ضرر رسوي خو مجبوریت و. بیا دجون په میاشت کې دغه عسکري وجبی په نورو وجبو تبدیل شوي چې پرې لیکلي به وه حلال او کوشر، (Kosher)کوشر دیهودانو ذبحه ده چې اکثره مسلمانان یې خوري. ، او حلال خو عیني دمسلمانانو ذبحه ده. کیفیت یې ښه و، او تاریخ یې هم برابر و، نورې څه میوې او شېریني هم ورسره مل وي، ددې با وجود یوه افغاني ډوډۍ هم ورسره زیاته شوه چې وروسته به یې کافي مړولو.

دډوډۍ دویشلو طریقه داوه چې کله به دډوډۍ وخت راورسید دوجبو کارټنو نه به یې دهرې خیمې مخې ته ایښودل، وروسته به یې نفر صف درول او ددروازې ترسوریو به یې یو بوتل اوبه او یو خوراك

ورکاوه. کله خو به ځيني ورونو دوه خوراکه هم په چل لاسو ته راوړل ،
عادل تونيسي او ثمير الجزائري به داکار ډير کاوه. په نيم ساعت کې به
موډوډي خوړله. کاغذونه او خلطي به مو بيرته مسترد کولي، که به کله
يو ورور په نيم ساعت يعني ۳۰ دقيقو کي ډوډۍ نه وخوړل بيا به سزا
ورکوله .

دوه سطلونه يې په شلو نفرو راکول چې دحاجت په وخت کې به ورتلو،
پرده يې يونړي ځادر و، چې دعسکر طرف ته يې پرده نه درلودله او يو
تشناب کاغذ به يې دورځي په شلو نفرو راکاوه. سطلونه به دورځي دري
ځله دبنديانو په لاسو هلته په بيلرانو کې تشيدل کوم چې ددغه ابرازو
لپاره استخدام شوي و، په بنديانوکې ډېر ورونه وه چې مريضان او
زخميان به و چې ډاکټر اودواته يي هرګړى ضرورت درلود ، د دوا لپاره
په ورځ کې درى ځله نرسان راتلل چې اکثره يې ښځې وي، دعاجل
ضرورت بيا وقت معلوم نه و. او ټالينول ګولۍ به يې ډېر له ځان سره
درلودي، اساسي دمعاينې لپاره څه نه وه، خو يواځې دضرورت
معلومولو ترماميتر او دغوږ ګوشۍ لرونکي ترينسکوف کارول کيده،
خو هغه په اصطلاح ډاکټران او نرساني ددوا په کيفيت او تشخيص ډېر
کم پوهيدل، د هر مرض لپاره به يې مريضان په دي مجبور ول، چې
ډيري اوبه وڅښي خاصتاً دقبض، تبي او زکام لپاره، ځکه دا داسی
دواوه چې ګټه يي درلودله تاوان يي نه درلود. هغه جوړ شوي محبس يا
توقيف ځاي په هغه ځاي کي واقع و، چې هلته دلويو بار وړونکو
الوتکو قرارځاي و، قرارځاي ته نژدي اطراف خامه او متهنه مځکه وه،
ډيرى سختي دوړى به يې کولي او ډېر بد ژغ به يي کاوه. خاصتاً دباد په
وخت کې، طبيعي ده چې کندهار دوړي او باد لري، خو ددغه الوتکو
تيزي هوا به څو چنده کاوه، ډېر ځله خو به زما دپريوتلو کالي بيخي تر

ګرزولاندي شوه چې دخاورو رنګ به یې ورکړي و. او کله به یې هغه خواړه چې دوی راکول له خاورو را ته ډك کړل او کله کله خو به دومره غتې او درنې الوتکې راتلې، چې په زغ به یې دچا خبره دغوږو پردې پرې کېدلې او له باد سره به یې خیمې چپه کېدلې. دشپې به یې له خوبه پاڅولو او•بیا به مو تولهٔ شپه او ورځ پر سر درد وو. دشپې او ورځې به عسکر څلور طرفه ګرځیدل. کله به یې دومره په لوړ اواز خبرې کولې چې خوب مونښو ځینې کولاي، خو بیا هم ځینې عسکر لږ په انساني خواخوږي پوهیدل، ډېر ځله خو به عسکرو دخبرو پرځاي ښکنځل کول، بې له کوم دلیله او ضرورته او سر بیره پر نورو ښکنځلو به یې ده( پك یو) کلمه ډېره استعمالوله (Fuck you)، چې اخلاقاً ډېره بې احترامه کلمه ده او تول بندیان ددغه کلمې په معنی ښه پوهیدل، ځکه چې دوي به ډېره استعمالوله، او کله ناکله خو به بې رحمو او متعصبو عسکرو دسرپنا ترپالونه په ورو شګو او ډېرو ویشتل، تر څو بندیان له خوبه خوند وانخلي. حاضري په شپه او ورځ کې دري ځله وه، چې بیا دوه ځله ته راغله. دمحبس په تولو خیمو کې به یې خلك صف درول او بیا به یې دنمبر په اخستلو سره حاضري اخستله. مثلاً ١- ٢- ٣ چې زما نمبر - ٣٠٦ و. دغه نمبرونه به دنومونو پر ځاي استعمالیدل چې زما تر خوشې کیدلو پورې مې هم دغه نوم و. دنمبر تر ذکر کیدلو مې دوي عجیبې اوپه زړه پورې واقعې راپه یاد شوې چې ذکر کول یې اړین بولم.

## دوې هيښوونکې قيصې

دا دوې عجيبې قيصې مې تراوسه پر زړه دي، هغه داچې په هرو څو ورځو.کې به دحاضرۍ اخيستلو مسؤول بدليده او دورځې او شپې به هم سره جلا وو، يو حاضري اخستونکي عسکر راغی، موږ يې ټول صف کړو او دترجمان په واسطه يې راته ووېل چې کله چې زه دمحبس په دروازه کې ښکاره شم نو تاسو به ټول سمدستې ولاړيږئ او دخيمې مخ ته به دريږئ او سلامي به کوئ چې زه دهر صف مخ ته را ورسيږم تاسو به خاموش دريږئ او کښته به ځمکې ته ګورئ، لوړ به نه ګورئ او کله چې زه دهر بندي نمبر وايم هغه به لبيك راته وايي يعني (welcome)او ماته به نمبر راښيئ راته ګورئ به او بيا به شاته ځي او دريږي به، تر څو زه ورته امر کوم بيا به کښيني، او که مو داسې ونکړل، يعني زما دغه خبرې مو پر ځای نکړې، نو بيا زه په قهر کيږم او کله چې زه په قهر شوم بيا نو ستاسو لپاره بل رحم والا نشته او ستاسو انجام به خراب وي دحيرت خبره دا نه وه چې دا ټيټ رتبه عسکر موږ ته داسې هدايت کوي او دومره د ذلت اراده لري، حيرت په دې کې و، چې يو داسې ذليل دڅو ډالرو عسکر چې په امريکا کې يې دژوند د تيرولو لپاره له عسکرۍ پرته بله دنده نشواي پيدا کولاي، دومره دمسلمانانو د توهين ارزو او اراده لرله، او د بنديانو په اړه يې دقانون د نه لرلو په خاطر هر عسکر غوښتل چې وغواړي هغه وکړي او خپل غرور پر ځای کې، خو هغو ايماندارو مسلمانانو کله هم د هغه دغه وهمي اټکل پر ځای نکړ.

دويم هغه نفر و، چې دډېر وخت لپاره يې دغرمې لخوا حاضري اخستله، ډېره سخته ګرمې وه دباد ګرم موسم وو، دغه بې رحمه ظالم

به چې کله دحاضرۍ اخستلو تکل کاوه نو به يې نيم ساعت له مخه بنديان صف کول او ټول بنديان به په يوه ځلي صف کيدل، حال داچې دبنديانو شمېر تر اتو سوو ډېر و. او هم تقريبا په شلو خيمو. يا زياتو کې جلا. جلا پراته وه، دا ظالم چې رنګ يې کټ مټ د بيزو غوندي و، ډېر بدرنګه او رتبه يې ډېره ټيټه وه، مخ کې له دي چې حاضري واخلي يو ځلي به يې ټول صفونه کتل، دومره په تکبر او غرور به روان و، چې په خپل ټول ژوند کې مې داسي څوك نه و ليدلي او دومره کرار به ته چې د چا خبره پر ځاي به ولاړ وو ، او کله خوبه دبل چا سره په ناحقه خبرو تر ډېره مصروف شو او بيا به يې په ډېر تکبر حاضري شروع کوله، او که به څوك ناست وو يا به د خيمي سيوري ته ولاړ و، نو به يې دستي سزا ورکوله، که به څه هم مريض و، په داسي طريقه يې مظلوم بنديان هره ورځ له يوه ساعت تر دوو ساعتو پوري و دغه تاوده لمر ته درول ، الله(ج) خودي دده جهنم ځاي کړي، امين. ما ته ځکه دلچسپه او په زړه پوري وه چې د بشر دحقوقو ذمه داران چې په دنيا کې له زمري څخه بيا تر ملخه پوري، هر حيوان ته قانون لري او احترام يې کوي، خو زمونږ لپاره چې انسانان و ګناه موهم معلومه نه وه، قانون وجود نه درلود او هر بي پلاره ذليل عسکر به چې دخپل ژوند لپاره يې عسکري اختيار کړي وه په مونږ لوبي کولي، يوه ورځ دغه ظالم بدبخته عسکر زمونږ دخيمي چاپيره سيمي خاردار چك کاوه او لکه دښکار سپي هر شي ته به يې په ځير ځير کتل ، ويي ليدل چې دښيښي يوه وړه ټوټه په خيمه کې وه، چې تقريباً ديوه نوك په اندازه وه، ماته يې وويل چې رايې کړه؟ ماهم ورو غورځوله، بيايې په ځير ځير ورته کتل ماته يې وويل: دادي له کمه ځايه راوړې ؟ ما ورته وويل مونږ خو له ځان سره څه نه دي راوړي او نه مونږ دلته خپله راغلي يو او نه دباندي وتلي يو، دا ښيښي کيداي

شي له ډېره وخته دلته پرتي وي، ځکه دا شاړه بيديا ده او هر څه پکښې شته. هغه ويل حتماً به يې راښيې او بيا به يې په لويه چغه ويل: ډونټ ټاك اي ويل فك يو( don't talk I will fuck you ) بيايې صليب غوندې پر زنګنونو ودرولم. ترڅو ساعته پورې يې سزا راکوله. دا ظالم به چاپيره د بنديانو په خيمو تاويده، چې کله به ماته راورسيد ښکنځل به يې کول اوبدالفاظ به يې استعمالول. زموږ سره دومره توان هم نه و، چې ورته ووايو چې ولې ښکنځل کوي، که مو ورته ويلي واي نو بيا موږ ته سزا راکول کيده، ځکه مجرد عسکر ته جواب ورکول جرم او دعسکر بې احترامي وه. خو دوي چې څه کولاي هغه يې حق و. (دزړه سوخت به مي ارام نشي هيڅکله - چې مي ياد شي دغلام بادشاهي) زړور ځوانان دچا په لاس کې و ، دمسلمانانو د بې اتفاقي او له اسلامي حدودو دوتلو او دمسلمانانو داعتماد ،او د اميرانو دغلامي په خاطر،چې تردين يې بې ديني او تر حلالو يې حرام او داسلام تر سپڅلي شريعت يې فحشا او کفري قوانينوته ترجيح ورکړه. او دځان دعزت لټون يې دخپلو مؤمنو مسلمانانو په بې عزتۍ کې ولټاوه. اللهم ارحم علينا واصلح امراءنا.

په څلور کونجه لوي محبس کې يو اهن چادرې دالوتکيو پخوانې ورکشاپ و، چې دننه پکښې کوچني ځايونه انتخاب او جوړ شوي و ، هغه کسان چې سزا به يې ورکوله هلته به يې وړل، خو دامي هم وليدل چې ځيني خلك به په ځنځيرونو بارو او ټول بدن به يې په ځينځيرونو تړلي و، او نور هم ورته بد حالت و، دغه محبس شپږ برجونه درلودل، چې دلرګيو له تختو څخه يې جوړ کړي وو مسلح عسکر به ۲۴ ساعته پکښې ليدل کيدل چې پهرې به يې کولې او نورو عسکرو به بيا په موټرو کې ګزمه کوله، په دغه لوي اوسپنيز اهن چادر کې له اتو څخه تر لسو پورې واړه دسيمانو او اغزيو قفسونه جوړ شوي و ، موږ ته ډېر

نژدي و ، تووله شپه به سپي پکښې غپول کيدل او عسکرو به په نوبت سره چيغي اوناري پکښې وهلي او بنديانو ته به يي ښکنځل كول ، ددي لپاره چې بنديان ويده نه شي او خوب ونکړي، په دغه ځاي کې به يي خلکو ته دبي خوبۍ سزا ورکوله. چې له څلورو ورځو، بيا تر مياشت پوري خلك پكښې پراته وو .

# څوجالبي پېښې

عجیبي اوغریبي پېښې خو ډېري پېښېدلي او هره ورځ له داسې پېښو خالي نه و، خو څو واقعات غواړم دنمونې په ډول سره ولیکم، یوه ورځ مي ولیدل چې یو سپین ږیری سړي یې راوست . عسکرو یې لاسونه تر شاه ورتړلي دي او په ډېر زور سره یې کشوي او په یوه خیمه کې یې چې ماته نژدي وه وغورځاوه، خلاص یې کړ او عسکر ځیني ووتل دخیمي کاونډیو ورونو ورته وویل چې بابا پورته شه؟ خو هغه دومره ستړي شوي و چې نشواي ولاړیدلاي، بیا ورونو ترلاسو ونیوه او پورته یې کړ، ساه یې تپه دریدلي وه او خبري یي نشواي کولاي البته وارخطا به هم وو، ورونو ورسره کمك وکړ او دسپین ږیري غریب څخه هر څه ورك وو ، تریوي ورځي پورې سپین ږیري بابا هم داسي و، په دي نه پوهیده چې چیرته یم او څه راسره کیږي، حتي په دي هم نه پوهیده چې موجوده بندیان څوك دي، دعسکر او بندي تر منځ یې توپیر نشواي کولاي، دویمه ورځ یې بیا تحقیق ته نوم یاد شو، خو چي کله یې پرمخي پریوتو ته هڅاوه دي نه پوهیده چي څنګه پریوزي او نورو ورونو هم ورسره کمك نشواي کولاي، ځکه چې نور ورونه مجبوره وو چې پاي ته ولاړ شي او بل طرفته وګوري، عسکرو په ډېره بي رحمۍ پرمخي ورغورځاوه او سر بیره پر کنبیناستل . تینګ یې وتاړه او دغه ورور یعني سپین ږیري بابا فکر کاوه چې حلالوي مي، وژني مي او په زوره زوره به یې ناري وهلي کافرانو دوه دقیقي مي پریږدئ چې دوه رکعته نفل وکړم؟ بیا مي حلال کړئ، خو عسکریې به ژبه نه پوهیدل له حرکت سره به یې نور هم زور پرکاوه، موږ له لیري څخه ورته ناري وهلې بابکه

نه دي وژني تحقيق ته دي بيايې يواځې څه پوښتنه درڅخه کوي او بيرته دي راولي، خو ده به له ډيري وارخطايي څخه زموږ هيڅ هم نه اوريدل، ما په هغه ساعت کي ډير سخت وژړل او د ژړا په حالت کي له ډير قهره اوغوسي نا اميدي څخه، به کله کله راڅخه وخندل شول، خو وروسته چې کله موږ ددغه بابك څخه معلومات وکړ عمريي يوسل او پنځه کاله -۱۰۵- کاله و، داروزګان ولايت، دچارچينو دولسوالي اوسيدونکي وو، لومړنی کس وو چې دګوانتانامو دکيوبا له دوزخ څخه خوشي شو.

## دوهمه پيښه

سهار وختي کنبيناستلو او لمانځه ته تياری کوو، داوداسه له تکليفه خو خلاص وو، تيمم مو وواهه او سنت مو وکړل، دلمانځه امامت ته زه وړاندي شوم، چې کله مو لمونځ شروع کړ، نيت مو وتاړه ډير وختي او دسهار لومړی وخت و، په وره کې عسکرو ديوه عرب ورور نمبر ياد کړ، چې تحقيق ته يې بوځي، عرب ورور عادل نوميده او دتونس اوسيدونکي و، او له موږ سره په جماعت کې ولاړ و، دوي مونږ ليدلو چې لمونځ ادا کوو او ولاړ يو، خو دوي صبر ونکړ او دويم ځل يې بيا به لوړ غږ نمبر ياد کړ او ورسره جوخت يې ناري کړی هري اپ.

(herry up) ( په تلوار سره) خو بيا هم موږ په لمانځه کې وو، عسکرو نور صبر ونکړ په ډيره غوسه او تلوار سره يې دروازه بيرته کړه او په منډه زموږ خيمي ته داخل شول، زه له رکوع څخه پورته او سجدي ته ولاړم چې دسجدي په حالت کې مې دوه عسکر پرسر راکښيناستل او پر سريې زور راکاوه چې پورته نشم او نورو عسکرو عادل ورور له صفه کش کړ، ويې تړی، له خيمي څخه يې وايست او وروسته عسکر زما له سر څخه ولاړ شول، بيرته موږ خپل لمونځ راوګرځاوه او عادل ورور يې په ډيري

سختئ سره کشاوه اوتحقیق ته یې بووت ، دنړۍ په قوانینو کې تر ټولو مهمه خبره داده، چې دمذهبي شعائرو او دودونو احترام وشي، ځکه دنړۍ ټولې بدبختئ دمذهبي دودونو له سپکاوي څخه پیدا شویدي او هر وخت چې عامي وژني او دملتونو په مینځ کې تعصب ډېر شوي، دمذهبي توهینوونکیو اعمالو په خاطر، په نړۍ کې په دي ډېر ټینګار کیږي چې هیڅ وخت باید دمذهبي چارو بي احترامي ونشي، خو امریکایانو ددنیا له قوانینو په بغاوت سره دمذهبي چارو داسي احترام کاوه.

## بله پېښه

دري خیمي سره نژدي وي یواځې یو اغزن سیم تر منځ وو، چې ددوو خېمو حدود یې معلومول دغرمې د ډوډۍ وخت و، او عسکرو دغرمې استحقاق وویشه زما وخنګ ته یوه خیمه وه چي یو پاکستانی ورور هم پکښې وو او دغاښونو له درد څخه یې هم شکایت درلود ، نرسانو ته یې زښت ډېر وویل خو یواځې به په ټالینو Talinol ګولیوځوابیده چې دهر مرض لپاره ورکول کېدي، دردیې ساعت په ساعت او ورځ په ورځ زیاتیده په هم دغه غرمه یې ډوډۍ په تلوار سره نشوای خوړلی نیم ساعت یعني دیرش دقیقي وخت تیر شوخودغه ورور ډوډۍ تمامه نه کړه په همدغه ورځ یو پنډ پړسیدلي لنډ عسکر وو ټیټه ونه یې درلوده شني سترګي دبیزوګي شکل یې درلود خورا غوښن هم و، ددې ظالم د ډوډۍ ورکولو او بیرته دکچري ټولولو نوبت و نیم ساعت پوره شو نورو ورونو ډوډۍ وخوړله خو هغه پاکستاني ورور چي دغاښو دردیې درلود د خوراك په نیمايې حالت کي و، نورو ورونو کچره ورکړه خو ده عذر وکړ او عسکر ته یې وویل که څه لږ نور وخت ورکړي ځکه چې دی معذور دی

دغه ظالم ددي پر ځاي چې دده عذر قبول کړي دغه بندي دروازي ته وغوښت او ورته يې وويل چې ولي دي ډوډۍ نه ده خوړلي بيايې په يوه لاس ترغاړه ونيوي او په بل لاس يې په ډېر قوت سره په سوکانو په خوله خوله وواهه او موږ ورته کتل څه مو نشواي ورته ويلی. دې ظالم داحق نه درلود نيم ساعت پوره شو که يې ددغه ورورعذر نه قبلولي نو باقي ډوډۍ به يې ترې اخستي واي خو وهل دانسانيت له چوکاټه وتلی کار و. شپه راغله د ډوډۍ کارتنونه توزيع شول خو کله چې دوجبو د وېش وخت راغی موږ يې له اخستلو ډډه وکړه دډوډۍ د نه خوړلو خبر په محبس کي خپور شو خو دمحبس پر مسؤولينو يې ښه اغيزه نه درلوده، دمحبس مسؤول ورسره نور څه لوړ رتبه عسکر محبس ته راغلل، هرې خيمي ته دريدل او د ډوډۍ دنه خوړلو علت به يې پوښت زمونږ خيمي ته چې راغلل موږ په يوه اواز دتيري غرمي پيښه ورته ياده کړه ،مسؤول قبوله کړه چې بيا به داسي نه پيښيږي بيا موږ ډوډي واخستله او ومو خوړله يوه بله ورځ محمد نواب سخت مريض و، محمد نواب دسعودي عربستان اوسيدونکي و، هميشه به مريض و،په دغه ورځ ډير مريض و، دولاړيدو توان يي نه درلود تفتيش يا تلاشي راغله موږ دمعمول په څير شاته ولاړو دغه ورور دحرکت نه و، امريکايان داخل ته راغلل دغه پنډ ظالم هم ورسره و، چې کله يي مريض بندي په ځاي کې پروت وليد نويي په وهلو شروع وکړه په سوکانو او لغتويي واهه تر څو يي په کشولو تر اخره ورساوه دياودوني وړ ده چې په امريکايي عسکرو کې سم سړي هغه وو چې خپله يې بد نه واي کړي خو بل ته د ظلم نه کولو نصيحت هيچا نه کاوه خو دغه ظالم عسکر له موږ سره تر پخوا ډېر تعصب کاوه او موږ به هيچا ته هم شکايت نشواي کولاي همدغه عسکر دقرانکريم بيعزتي وکړه چي په راتلونکي پېښه کې يې مفصل بيان دي

## څلورمه پېښه

یوه ورځ دورځي لخوا په خیمه کې ویده وم دخیمي نورو ملګرو ځینو وظیفه کوله ځینو تلاوت او ځینو هم شطرنج کاوه یو یمني ورور د شطرنج لوبه دامام شافعي صاحب په یوه روایت روا بلله او ډېره مینه یې ورسره درلودله او عمر یې تقریباً ٥٠ تر ٥٥ کلو پوري و. په ښه خواږه خوب ویده وم چې دځینو ورونو په ژړا سره له خوبه راویښ شوم ځیني ورونه په زوره زوره سلګي وهي او څوك ژاړي زه حیران شوم چې څه پیښه ده اوپه نوروخیمو کې هم داسي حالت وو او دا ورونه داسي خفه دي چې ما کله هم نه وو لیدلي. پوښتنه مي وکړه خیر خو دي څه پیښه ده؟ یوه ورور چې دسعودي اوسیدونکي وواومحمد نواب نومیده راته هغه پنډ پړسیدلي کافر عسکر په ګوته کړ چا چې هغه پاکستاني ورور په خوله په سوکانو وهلي و هغه ملعون هلته لري ولاړ و. له موږ څخه یوه خیمه خوا څلور بیلره په ځمکه کې ایښودل شوي و چې نیم په مځکه کې ښخ شوي وواو بندیانو پکښې مرداري او بولي اچولي نواب راته په ژړا ویل: دغه ظالم قرانکریم واخیست او ښه یې موږ ته کتله او بیا یې بولي ورباندې وکړې او په بیلر کې یې وغورځاوه داهغه پېښه وه چې تر ټولو دردمنه پیښه وه چې په کندهار کې پیښه شوه خو نیوزویك دامریکا یوي مجلي ډېره وروسته چاپ کړه او مرجع یې ګوانتانامو ښودلي وه ، اصلاً دا پېښه په کندهار کي شوې وه موږ دسره صلیب دراتلونکو استازو سره خبره وکړه او ترې وموغوښتل چې دبندیانو په لاسونو کې مبارك قرآن باید بیرته یوسي ځکه چې قرانکریم ساتنه غواړي موږ دحفاظت اوساتني توان نلرو ددي برسېره قران زمونږ لپاره دعذاب یوه

وسيله ده چي دوي يې کاروي او موږ تر هر څومره ډېردرانه عذاب ورباندي څوريږو خوسره صليب دا کار ونکړ نه پوهيږو چي نه يې شو کولاي او که يې نه کاوه خو امريکايې مسؤولينو دا پلوجايز په ويلو(Apologize) سره موږ ته اطمينان راکړ چې بيا به داسي عمل صورت نه نيسي خو ددي با وجود دقران تلاشي کول، په سپيو باندي بويول او له تلاشي وروسته پر ځمکه غورځول دوام درلود. تر هغه وخته چي زه ګوانتانامو ته انتقال کيدمه همداسي وضعيت وه، امريکايې مسؤولينو دهغه عسکرد سزا خبره هم ومنله خو هغه عسکر بيا هم په محبس کي و، ډېر کرکژن او توهينونکی سلوك يې کاوه الله دی دجهنم غيږورباندی ډکه کړی!

## پنځمه پېښه

يوه شپه مو ډوډی وخوړله ماسخوتن وو، لمونځ مو وکړ، چې يو دم ډېر زيات عسکردننه راغلل، او په هوا کي دچورلکو ږغونه هم تر غوږو کيدل دعکاسی غوندی سری لمبی هم په هواکی بريښيدلی، دمحبس په ګوټونو کې مسلح امنيتي موټر ځاي پر ځاي شول، او يو موټر دمحبس منځ ته راغی چې دعکاسی ويډيويي کامري يي پر سر نصب وي، موږ نه پوهيدلو چې څه پېښه ده او ددې نوي کار سبب څه شی دی؟

لږ وخت وروسته موږ ته امر وشو چي ټوله پرمخي پريوزو، او لاسونه هم کښته وغځوو، خبري هم ونکړو او نه شاه او خوا وګورو، خو بيا به هم موږ شاه و خوا دسترګو تر چولو کتل مخته ته مو بل صف خيمي وي او له خلکو ډکي وي له چپې خوا په منډه په ځنځيري قطار عسکرو راځغاستل، زغري يې پر تن پر لاسو او پښويې هم داوسپني پټی تړلي وي، دهيندارو خولی يې پر سروې له راسته طرف څخه نورو عسکرو

راځئغاستل چې زغرې يې پر تن اوسپنيزې پټۍ. يې په پښو او لاسو تړلي وي، او غټي هينداري يې په لاسونو کې وي، په ډېر تلوار به خيمو ته داخليدل ، اوبر بنديانو به يې حمله کوله، په يوه بل ځاي کې به يې غورځول او بيرته به يې په نورو عسکرو هغه خپلو ځايونو ته راوړل، په همدې شکل يي خپلو عسکرو ته تدريب، او تمرين، ورکاوه او خپل فلم يې جوړاوه، ترڅو امريکايانو اونورو خلکو ته وښيې چې امريکايې عسکر په څومره شهامت سره دِدوي په اصطلاح تروريستان ټينګوي، خو داد توهين او بشر ضد عمل دنړۍ له ټولو قوانينو خلاف، او په انساني جامعه کې وحشي او غير انساني عمل و، چې انسان هېښوي خو دا عمل څو ځله په بېل ترتيب سره تکرار شو، او دي ته ورته نوري واقعي وي چې دټولو ليکل به کتاب راته ډېرغټ کړي

يوځل نيمه شپه وه، تقريباً ديوي بجي شاه خو ابه وه چې عسکرو په دروازي کې زما نمبر ووايه، او دتحقيق لپاره يې وغوښتم، تر ټولو وختونو يې په ښه طريقه بوتلم، او کله چې دتحقيق غرفي ته داخل شوم سترګي يې راته خلاصي کړي، محقق او ترجمان پر چوکيو ناست و ، او په منځ کې يو وړوکي ميز وو چاى او څه نوري خوړې پرې پرتي وي، او بيا دوه نور محققين هم راغلل او ښه داروموداريې وکړ زه حيران وم

چي نن څنګه دا خلك دومره اخلاقي رويه کوي، چې کله يې هم نه وه کړي يو لاس يې راته خلاص کړ، وروسته يي دمحبس په اړه څه پوښتني وکړي او بيايي د کور پوښتنه وکړه، چې حال پري لري که نه بالاخره يې پوښتنه وکړه، چې کورته ځي که نه؟ (ما وويل ولي نه) هغوي راته وويل چې موږ هم پلټني کړي او ستا په ضد مو څه نه دي موندلي، او ستا بند راته ګټه هم نه رسوي نو ځکه مو تصميم نيولي چې تا پريږدو، خو ته بايد موږ ته ووايې چې څه ته ضرورت لري، او څو پيسو ته، څو

تلفونونو ته، او بل راته ووايه چې له موږ سره دملا محمد عمر، او اسامه، او نورو عربو، او طالبانو وروڼو په نیولو کي ځومره همکاري کولی شي، همدااوس به ستا دخوشي کولو کار سم کړو.

ماته خوداسي خوشي کیدل تر نیولو ډېر ګران بریښیدل، او کله هم دومره دجرات خاوند نه وم، نه یم، چې د خپل مومن مسلمان ورور په سر سودا وکړم – خبره مي په بل طرف روانه کړه، پوښتنه مي ځیني وکړه زما دبند او نیولو سبب څه و؟که لطفا راته ووایئ؟ دوي ویل موږ فکر کاوه چې ته به دالقاعدي دتنظیم سره تړاو لري، دنیويارك، او واشنګټن، په پیښو به خبر یي او دالقاعدي، او دطالبانو غړي به درته معلوم وي، او مالي ځانګي به یې راته وښیي خو هغه څه موږ په ټا کي پیدا نکړل ، بالعکس ته له وطن سره مینه لرې، ددوی په اصطلاح (ماډریټ) شخص یې نو اوس دي دخوشې کیدو چانس دي، بیا ماورته وویل چې ستاسي له خولي دامعلومه شوه چې زه بیګناه یم، تاسو او پاکستاني غلامانو راسره ظلم کړي دی، نو باید بي قید او شرط تاسو ما خوشي کړئ، خو محققینو تر پایه دمادیاتو، او تبادلي نظر درلود ، دري ورځي همداسي تحقیقات و چې زما په انکار سره بیرته دخلکو رویه بدله شوه، تهدیدونه ډېر شول ، او عسکرو به یې هم په بد سلوك سره بیولم او راوستلم، تېر هر څه بل ډول شول

## له کندهار څخه
## ګوانتانامو ته لېږدونه

یوه ورځ سهار په خیمو کي ناست وو، چې ډېر عسکر راغلل، ځنځیرونه، بیړۍ او زولني یې دهري خیمي مخي ته وغورځولې او له یوې خوا یې له خیمو څخه لس لس نفره په یوه تناب سره تړل، او دمحبس له دروازي به یې دباندي ایستل موږ به په خپل منځ کې ډول ډول اټکلونه اورنګارنګ تبصري کولي، چا به ویل خوشې شو چا به ویل بل ځای ته انتقال شو ، او چا به څه او چا به څه ویل، خو لږ وروسته بیزته په هغه ترتیب سره راوستل شول ، خو سرېیره بریتونه ان ورځې یې ورته خریيلي وي، دا ترټولو دروندااوبد عمل و لومړی ځل وو چې دداسې توهینوونکي کار اقدام وشو، ماته نوبت راورسیداو ږېره مي وخرییل شوه، ږېره خرییل دنبوي سنت خلاف، او عامل یې دحنفی مذهب داکثرو علماء کرامو په فتوی فاسق بلل کیږي، او ما ته خو یقیناً له مرګ څخه بد تر کار معلومیده، نایې ته یې بوتلم ډېري زارۍ مي ورته نشوای کولای، خو څو ځلي مي سرته حرکت ورکړ خو دومره سخته څپېړه مي پرسترګو وخوړه چې تقریباً پنځه دقیقي مي په سترګو توره شپه وه، د یوه بل ډاکټرسخته څپیړه می هم رایاده شوه، چې هغه وخت یې په سترګو ووهلم، چې د دوا په وخت کي مي دوهلو شکایت ورته وکړ، سترګي می له وهلو خوږ شوي خو کله چې ډاکتر راڅخه وپوښتل، چې ولي دي سترګي خوږېږي ما ورته دوهلو وویل، هغه ظالم تر هغه سخته څپېړه ووهلم اوویل یې چه ولي شکایت کوي، همدا وجه وه چې موږ به کله هم چاته شکایت نشوکولای، خو دږېرې خرییلو دسترګو او

مخ درد راڅخه هیر کړل ، شیخ صالح دیمن اوسېدونکي چې ډېره ګڼه مبارکه ږیره یې درلودله، تر ډېره حده وژړل خو بیایې زما دژړا په وخت کې ماته تسلي راکوله، چې دا د الله ج په لاره کې وشول او غیرتمن رب به راته عوضونه راکړي،اوموږ بایددصبراوزغم لاره وپالو،څومره بدښکاریدو او هلته به مې دسپین سرو ښیرا ډېره را په زړه کیدله، چې د درد اوغوسې په وخت کې به یې ویل، ږېره دې وخرییل شه اویا به یې دیوه بدکار کولو په وخت ویل د پلار او نیکه ږېره دې وخرییله، داکار یو عیب او د شرم کار و، امریکایانو هم دا توهینوونکي چلند زموږ سره دتحقیرولو په غرض وکړ، لوی رب لره دی حمد وي ، چی دا عمل ورته معلومیږي چې حقارت دی، خو عجیبه داوه چې زموږپه اړه یې د توهین او دتحقیرولو په نیت دا کار کاوه خو دخپل ځان لپاره به یې عزت ګڼله.

یوه ورځ تحقیق ته وغوښتل شوم دتحقیق په خیمه کې راته محقق وویل چې تاسو متوکل صاحب پیژنی،اواحترام ورته لری، او ځینې پوښتني یې په دي اړه راسره کولي ، په اخر کې یي راته وویل چې ته غواړې ورسره ووینې، زما په زړه کې دا شك شو چې کیداي شي هغه هم نیول شوي وي، ما ورته وویل چیري دي او څنګه ورسره لیداي شم، هغه راته وویل چې هغه هم زموږ سره په توقیف کې دی، که ته موافق یې راوبه یې بولو، ما خو غوښتل چې ورسره وګورم چې پوه شم،چی څه رنګه راغلي دی او څه معلومات تری واخلم خو دلیدلو په مطلب نه پوهیدم، چی دڅه لپاره دوی غواړی زه دمتوکل صاحب سره ووینم،څه ګړی وروسته متوکل صاحب راغی او یوه قطۍ ایراني بیسکویټ یې هم په لاس کي و ، او ماته یې پر مېز دتحفې په شکل کښیښودل زما لاسونه او پښې تړلي و ، دبیسکویټو خوړل هم راته اسانه نه و او دوړلو اجازه یې

هم نه راکول کېدله، کور ودانی او مننه مي ورته وویله ،د افغاني دود مطابق روغبړ سره وشو پنځه ترلسو دقیقو مو خبري وکړې ، دی بیرته رخصت شو، او زه محبس ته بوتلل شوم ، خو دمتوکل صاحب له لیدو څخه مي دا انتباه واخېستله، چې ژربه ګوانتانامو ته سفروی، که څه هم متوکل صاحب ماته په دي هکله څه ونه ویل ما ګومان کاوه چې دي به خبر وي والله اعلم، په دویمه ورځ بیا تحقیق ته بوتلل شوم او دمستنطق کړه وړه بیا هم څه عادي و ، او دا په کندهار کې زما وروستی تحقیق و محقق په صراحت راته وویل، چې دنوي میاشتي یعني جولای په لومړۍ ګوانتانامو ته پرواز دي، او موږ هغه بندیان ګوانتانامو ته استوو چې بیا تر مرګه پوري هلته پاتي شی، وروسته له مرګه هم معلومه نه ده چې بیا به خپل ملك ته واستول شي او که نه، اوس تا ته وروستی چانس درکوو چې کورته ځي او که ګوانتانامو ته، خو بیایې هم کورته دتګ لپاره هغه تېرشرائط راته وړاندي کړل چې هغه دامریکایانو سره همکاري ((جاسوسي)) وه الله ج مو دې ترې وساتي!

امریکایي مستنطق راته وویل چې یوه ورځ مهلت درکوو فکر وکړه، او بیا موږ ته جواب راکړه ما په داسی کار کې ډېر لنډ فکر واهه، ځکه علم مي پر ځان حضوري و ،او ورته مي ویل چې زه تر ټولو موجوده ورونو محترم ،او لائق نه یم، جواب مي لنډ ورکړ، بسم الله دالله رضا مي قبوله ده دسبا راغوښتلو ته ضرورت نشته، زه دچا سره مصلحت نلرم او ځان ګنهګار نه بولم، نور ستاسي کار دي چې چیرته مو بیایئ هلته مو یوسئ، بیرته یې خیمي ته راوستلم ، دي ته مي ډېره تلوسه وه چې ژر مو انتقال کي تر څو له انتظار څخه ووځواودمقصدځاي ته ورسیږو،دویمه ورځ یې بیا زیږي سرونه بریتونه وروځي راته وخریيلي او دکال ۲۰۰۲ دجولای په لومړۍ دمازدیګر ترلمانځه وروسته ډېر عسکر راغلل او

دډېرو ځنځیرونوولچك اوبیړیو سره ، خپل ځنځیرونه یې زموږ دخیمو مخې ته وغورځول، انتقال یې شروع کړ، څلورم نمبر زما و، په نمبر یې ولاړ کړم، لاسونه او پښې یې راته وتړلې توره لوغړنه کڅوړه یې په سر راواغوستله، اوه اته کسه یې سره قطار کړو، له محبس څخه یې وویستو هغه ځای ته یې وروستو چې دانتقال تیاری پکښې کېده، پر لوړو تختویې کښېنولو لاسونه یې دمخ خواته راوتړل، توره خولۍ یې پر تورو عینکو را بدلې کړې،چې هنداري یې پلستر شوي وي، او هیڅ نه ترې معلومېدل، خو د ساه اخستلو لپاره بیا هم ښه و ، په غوږویې سختي ګوشکي راواغوستلي نور وروښه یې هم راوستل ، موږ به خبري سره کولي او یو بل ته به مو تسلي ورکوله، بیایې یو یو یوي بلې کوټې ته استولو هلته به یې کالي راڅخه ایستل او بربنډه عکاسي به یې کوله، وروسته به یې سره رنګ د اعدام کالي او سره بوټونه رااغوستل ، ماسکو نه به یې په خوله را تړل او لاسونه او پښي به یې په ولچك او بیړیوتړلې، هغه ته قفل او دقفل شا ته به په بل قفل بندېدې، تر څو لاسونه پکښې حرکت ونکړي، په څو ساعتو کې دخلکو کار وشو دانتقال کار شروع شو، یویو نفریې ولاړولو او له الوتکي سره یې نژدې یې یو ګړی درنګ کاوه او بیایې الوتکي ته خېژولو دالوتکي په منځ کې یو قطار چوکۍ وې، داوسپنې تخت یې وو د پښو بیړۍ یې په تخت پورې، او د شاه ځنځیر یې په چوکي پوري قلف کړل، نه مو پورته حرکت کولي شوای او نه مخ ته، ډېر سخت د عذاب سفر و، چې تر ټول محبس ما ته سخت او مشکل معلومیده، الوتکي پرواز وکړ دهر بندي مخ ته دوه عسکر ولاړوه تر لږ حده پوري ښه و، خو دوخت په تیریدو سره دخلکو فریادونه پورته کیدل ، زما یو طرف ته خیرالله خیرخواه دهرات پخواني والي وو، چې څوځله یې دلاسو له درده شکایت کاوه خو ورسره

کومه مرسته ونه شوه، زما لاسونه هم ډېر سخت په درد و ، ملا مي درد کاوه، پښې مي سختي خوږېدلې خو ږغ مي نه کاوه، ځکه چې دکومک او مرستي هیله مي نه درلودله، ډېرو ورونو له ډېر سخته درده ژړل ، او دځان سره به یې زورونه وهل لکه د ځنکدن په وخت کې چې سړي په عذاب وي، څه دپاسه شل ساعته لاروه او څلور ساعته به مخکې ترل شوي وو، او دري ساعته وروسته چي له الوتکې تر محبسه لار وه چې تقریباً دیرش ساعته په داسې عذاب کې وو،، په لاره کې یې یو یوګیلاس اوبه راکولې، او یوه دانه منه خو ما نه منه واخسته، او نه مي اوبه څښلي دي، ځکه تشناب ته تلل بیا یو بل جداعذاب اوغم و، او بل په داسي ټینګو تړلیو لاسو موخوراك نشواي کولاي، لاسونه مو ډېر سخت وپړسیدل ، خولس دولس ساعته وروسته بي حسه شوله، ولچك دلاسو په پړسیدلي غوښه کې پټ شول، چې بیایې دخلاصیدو په وخت کې امریکایان هم په تکلیف کړل،ځکه خلاصیده یي سخت و، الوتکه په لاره کې یوځلي کښیناسته او دویم ځل دمقصد ځاي ته ورسیدله.

## ګوانتانامو ته رسېدل

دالوتکي څخه بیا هم یو یو نفر کښته کیدل، او په یوه موټر کي یو د بل ترشا سره تړل کیدل ، دموټر له دروازي سره په عربي او پښتو ږغ کې په ډېره غوسه ویل کیده، چې پام حرکت ونکړئ ځاي پر ځاي اوسئ، خو خلك ډېر وچ و او حرکت به یې کاوه خو له حرکت سره جوخت به یې یو سخت د لغتي ګوزار خواړه، چې ما هم پکښې دوه دري ځله دلغتي ګوذار وخوړ موټر په کښتې کې وخیژول شو او بیرته کښته شو مزل یې کاوه تر څو خپل مقصد ته ورسید ، هلته یې یو یو نفر پر ډبرو اوشګو کښینولو او یو یو ګیلاس اوبه به یې راکولي، ۰ لږ ساعت وروسته یې دولچګو سخت قلفونه خلاص کړل او عادي بیړې او ولچك پاتې شول، زما لاسونو تر یوي میاشتي پوری پړسوب درلود، او تر دریو میاشتو پوري بي حسه و ، چې په حرکت یي نه پوهیدم، لږ ګړې دلته وو، بیا کلینیك ته بوتلل شوم تلویزیوني عکاسي اوصحی معاینه وشوه، او وریسي د تحقیق خونې ته بوتلل شوم ، په خونه کې یې ټینګ وتړلم، او لږ ګړې وروسته محقق راغي چې یو فارسي ژبي ژباړن یې ژباړه کوله او پوښتني یي شروع کړي، څنګه یې؟ زما نوم تام دي، او زه مامور شوی یم چې له تاسي تحقیق او ګرویږني وکړم، زه چې ډېر ستړي وم او دخبرو توان مي هم نه درلود یواځې دومره مي ورته وویل زه دخبرو نه یم بیا به ګورو، اوس مي هغه ځاي ته واستوه کوم چې تاسو غواړي، خو هغه ډېر اصرار کاوه چې خبري وکړم ، بیا هم زه غلی ناست وم او قلباً مي نه غوښتل چې خبري وکړم، او بل دا چې مخ کې به موږ ویریدلو چې ګوانتانامو ته به مو ولیږي، اوس هغه هم وشول او هغه وهم ، هم نه و، او

له سزا څخه یې هم نه وېریدلو، ځکه تر ژوند به مو مرګ ته ډېره ترجیح ورکوله، څومره چې تام اصرار کاوه زه به ساکت ومه، ترڅو دی نا امیده شو او بیرته له غرفې ووت ، لږ ګړی وروسته عسکر راغلل زه یې له تخته خلاص کړم او روان یې کړم او هغه قفس ته یې بوتلم چې د اوسیدلو لپاره یې جوړ کړی وی، داوسپنې له کانتینر څخه جوړ شوی قفس ډېرتنګ راته ښکاره شو، لاسونه او پښې یې را خلاص کړل،موظف عسکر عسکري وجبه یاخلطه دخوراك لپاره راکړه ، موږ ته خو دډېري خوشحالۍ خبره داوه، چې وروسته دپنځو میاشتو موږ ته اوبه پیدا شوي چې اودس پرې وکړو، ژر ژر مي اودس وکړ ، لمونځ مي وکړ ، اوویده شوم، خو لږ وخت ویده شوی وم چې دورونو په ږغ سره راویښ شوم چې په لوړ اواز سره یې خبرې کولې، ورونه ویښ ناست و شپه پراوږده شوې وه، ځینوورونو به ویل چې دلته به لمر نه راخیژي، او بل به ویل دلته شپه ډېره اوږده ده ، بل به ویل البته شپه به اتلس ساعته وي، چا به څه ویل او چا به څه ویل،خو یو هم حقیقت ته نه و رسیدلی، زه ښه ویده وم او بیرته ویده شوم تهجدو ته هم راپورته نه شوم دسهار تر لمانځه پورې بیخي په درانه خوب ویده وم، نه دعسکرو په ږغ او دربا ویښ شوم، او نه دځاي نویتوب راباندې اثر کړی و، سهار شو لمونځ مو وکړ او بیامودلاري قیصې سره شروع کړې، خو ښه خبره داوه چې دننه په عنبر یا بلاك کې پر خبرو بندیز نه و، او دعسکرو رویه نسبتاً تر کندهار او بګرام ښه وه، نسبتاً لږ حریت و، خوداحریت په یوه قفس کې یوائې اوبس ، قفسونه یو دبل په څنګ و چې شپږ پوټه یې اوږدوالي درلود ، او څلورنیم پوټه یې بر و، یوه دچادر تخته یې دقفس په منځ ویلډینګ کړې وه چې ده خوب لپاره یې کار ځیني اخست ، کموډ او یو کوچنی داوبو نل په قفس کې دننه جوړشوي و چې دا قفس

مو دخوب، خوراك، ، لمانځه، او دحاجت ځای و، دیوه او بل قفس په منځ کې اوسپنیزې جالی وې، خو دحاجت په وخت کې به ډېر مشکل و، یواځې ستر به مو په پټو سره کاوه خو بیا هم ضرورت وو- له ما سره په دغه پرواز کې اوه تنه افغان ورونه، او نور عرب ورونه وو خیرالله خیر خواه، حاجي ولي محمد صراف، مولوي عبدالرحیم مسلم دوست، بدرالزمان، او دسنګین خیرالله، او دوه نور ورونه وو چې نومونه یې زما له یاده وتلي دي، خیرالله ورور چې کله به یې اوسپنیز قفس ته څوک ننوېست نو معمولاً به یې دشاه له خوا ددروازي تر یوي کوچنۍ کړکۍ د هغه لاسونه ورته خلاصول ، خو خیرخوا ورور وایې زما دا یقین شو چې دا خومي په همدی ځاي پوری تړلی پرېږدي، او ویل یې چې زه خو یې لومړی ځل بیا په دروازه پوري وتړلم خو هغه بل خیرالله بیا داځای موقت (لنډ مهالی) باله، او ځیني عربو ورونوخوبیایقین نه کاوه، چې دادکیوبا جزیره ګوانتانامو ده، هغوی به ویل چې دا دخلیج یوه جزیره ده اواستدلال به یې داکاوه چې هوایې هغې ته ورته غوندې ده، او لمونځونه به یې هم دقبلي درسم شوي نشان پرعکس کول چې خالد ظهراني، هم په دغه ورونو کې وو او زما ګاونډی و، زه اونومړی به دلمانځه پروخت شاه په شاه دریدو، ما به مخ پر ختیځ او ده به پر لویدیځ لمونځ کاوه، عربو ورونو به دامریکایانو په هر قول، او عمل، شك کاوه دروغ به یې ګڼل او حقیقت به یې په عکس کې لټاوه، او تر ډېر وخته یې همداسي کول چې بیایې بیرته یقین زموږ خواته راوګرځېد ، او ځیني ورونو تر ډېره وخته شك کاوه چې دغه عسکر عرب دي، او په عربي ژبه ځکه خبري نه کوي چې زموږ خبري نورو جاسوسي سرچینو ته ورسوي، او تر ډېره وخته به یې په خبرو کې پام کاوه، او کله

کله به دعسکرو تر خولې هم څه عربي الفاظ ووتل او یا به یې په عربي ژبې کیف حالك ویل چې دي نورهم شکونه ډېر کړل.

## دري ډوله عسکر

عسکر دري ټولي وو مختلف نښانونه یې درلودل، مثلاً دیوه ټولي درخته (ونه) وه، اود بل ټولي کریچ و، او ددریم ټولۍ ګرد سمبول یا میاشت وه، خو په هغه وخت کې دونې د نښان لرونکي عسکر ډېر با سلوکه خلك و دپروګرام مطابق یې عمل کاوه، او له موږ سره یې ښه رویه کوله، تعصب یې نه درلود، خدمت به یې پر وخت کاوه، دډوډۍ د وېش په وخت کې به یې مقرره ډوډي پوره راکوله، او میوه به یې هم پوره راکوله، دخوب په وخت کې به یې مزاحمت نه کاوه، بې ځایه تفتیش او تلاشي به یې نکوله، دمریض دحال پوښتنه به یې کوله، ډاکټران به یې ورته راغوښتل ترجمان به یې په وخت راغوښت، او دغسل او ګرځیدو وخت به یې پوره راکاوه، بې ځایه به یې سزا نه راکوله د دروغو راپور به یې خپل مشرانو ته نه ورکاوه، جامې به یې سمې راته بدلولې، که به څیرې او خیرنې جامې پکښې راغلې وې هغه به یې دویم ځل راته بدلولې، دوتلو په وخت کې به یې ولچك او زولنې په احتیاط را ته اچولې، احسان او ښه اخلاق خلك متاثر کوي، موږ به هم ورسره مشکلات نه جوړول، که به یو ورور زړه تنګی هم و، او څه تیره خبره به یې کوله مونږ به ورته توصیه کوله چې داسم خلك دي باید موږ هم ورسره انساني او اسلامي اخلاق وکړو، خو کریچ والاعسکر بیا بل ډول خلك و، دپروګرام ډېر تابع خو نیم متعصب غوندې ښکاریدل، په ډوډۍ کې به یې ډېره درغلې کوله، او خلکوته به یې ډېر ځله سزاور

کوله ، دشپې به یې هم مزاحمت کاوه خو ځینې عسکر بیا هم پکښې ښو خلکو غوندې وو نورماله ګذاره به یې کوله.

خو میاشتې والاعسکر بیا ډېر متعصب و ، اخلاقي یې نمرې یې صفر وې، په ډوډۍ کې به یې درغلي کوله، همیشه به یې ورېې پریښودلو، دخوب په وخت کې به یې ډېرمزاحمت کاوه ، دکالو په بدلیدوکې به یې کوښښ کاوه چې خیرن کالي بیرته زمونږ په غاړه پاتې شي، دبندیانو غصه به یې ډېروله، له توهین سره مل کړنه به یې کوله خو بیا به هم کله نا کله څه سم خلك پکښې پیدا کیدل چې دانسان څه نښې به په کښې لیدل کیدې خوډېرکم - نوري دري ټولې و چې یو یې کلې والا اوبله ۹۴ وه، او بل یې اسپانیوي وه - اسپانیوي ډېر رحم والاخلك و ، همیشه به یې له مونږ سره کومك کاوه، دښو اخلاقو خاوندان وو، تعصب پکښې مطلق نه لیدل کیده ، بشري خواخوږي یې درلودله،کله کله به یې تیروتاریخي پېښو ته هم اشاره کوله، چې نیکونه او لونږ نسلونه یې مسلمانان تیر شوي و ، اضافي ډوډۍ به یې راکوله، کله یې هم سزا نه راکوله لوخ خلك به یې پټول، دخوب په وخت کې به یې هیڅ مزاحمت نه کاوه، اوبه، صابون، شامپو به یې راکوله، مجلس به یې راسره کاوه دلمانځه په وخت کې به یې ښه احترام کاوه، دقران کریم بې عزتي به یې نه کوله، او له سیاسي لوبو څخه به یې هم کله ناکله ځان خبراوه، خو داخلك لږ وخت پاتې شول چې وروسته پرې سرو امریکایانو شك کاوه چې دوي له بندیانو سره ښه معامله کوي،له هم دې کبله له محبس څخه لرې کړل شول ، ماته یوه اسپانیوي عسکر شل ورځې مخکې ویلي وو چې مونږ دلته نه پرېږدي، او کیداي شي بل ځاي ته مو ولیږي، ځکه سره امریکایان شك کوي چې دوي له بندیانو سره کومك کوي، خو کیلي( کنجی) والا بیا له انسانیت څخه لرې او له

تعصب څخه ډك خلك و ، چې تر ډېره وخته پوري په جزيره كي پاتي شول ، ان تر اوسه (زما تر ايله كيدو) پوري و ، اخلاق يې ناوړه و دلمانځه احترام يې نه كاوه او هميشه به يې بنديانوته مشكلات جوړول، بنديان به يې دې ته هڅول چې مشكلات جوړ كړي، او دوي يې وليكي او بياسزا وركړي، هر عسكر به يې كوښښ كاوه چې مشكلات جوړكړي، د دروغو راپوږونه به يې خپلو مشرانو ته ليكل ،دقرانكريم بي عزتي يې څو ځله وكړه، بنديان يې وهل چې وروسته به يې يادكړو،اكثره به په كمپ كې مشكلات له دوي سره پيدا كيدل چې البته دبنديانو حوصله به ورته ختمه شوه، د شپي له خوا به يې په عسكري غټو بوټو دربهار كاوه، په زوره خبره به يې كولي او برقونه به يې روښانول، دشپې تلاشي به يې كوله دروازي به يې په ډېر زور سره قلفولې او خلاصولې تر څو بنديان نا ارامه اوسي، خو بيا هم دخدمت په وخت كې به يې څه ناڅه خدمت هم كاوه، خو نائن فور ۹۴ تر ټولو بد او متعصب عسكر و ، وحشي او ډېر مغرور غوندي، بيخي به يې خدمت نه كاوه، او څومره چې بنديان په تكليف كېداې شواې دومره به يې په تكليفول، چې څومره به د بندي ضرورت وو نه به ورته راتلل،او دخبري ځواب به يې هم سم نه وركاوه، او دمريضانو راپور به يې ډاكترانو ته په وخت سره نه وركاوه، له نورو اړتياووسره به يې له بې پروايۍ ډک چلند كاوه. بې له موجبه به يې خلكو ته سزا وركوله، دلمانځه په وخت كې به يې مزاحمت كاوه، او دقرانكريم احترام به يې نه كاوه، دا يواځيني ټولی و چې بنديان ورسره دومره په تضاد كې شول او نه يې غوښتل چې دا عسكر په كمپ كې پاتي شي، اوبه يې پر شيندلي دكار به يې نه ورته ويل جواب به يې وركاوه د تفريح لپاره ورسره نه وتل ، تفتيش او تلاشي به يې نه وركوله، اوښه خبره به يې ښكنځل ورته كول حتي بنديانو قصد وكړ،

چې په هرډول وی بايددا خلك نه وي او كه دوي وي مونږ به تر خپل وروستي حده پوري مشكلات جوړ وو، همداسي وشول مقاومت وشو چې دځو مياشتو وروسته دوي له محبس څخه وويستل شول، او يا په نورو ټوليو وويشل شول ، داهغه ټولي و چې تر ډېره به موږ ګومان کاوه، چې يهوديان به وي، او يابه اسرائيلي عسكر وي، خو له امكان څخه به لري هم نه وتركال ۲۰۰۵ پوری همدا عسكروه چې ارمی يي بلل اوپه زمينی قواووپوری يي ارتباط درلودی دهغه وروسته ناوی يعنی بحری قواوی راغلی چې اکثره واک ددوی سره وو نسبتا ترزمينی ځواكونويي ښه ګزاره كوله خوبياهم متعصب خلك پكښی وه چې مشكلات به يي جوړه ول اواستفزازی اعمال به يي تر سره كوله خوبيا مشکلات حل نه کړای سول والله اعلم.

## دامریکایي عسکرو تبدیل

په هرو شپږو میاشتو کې به عسکر بدلیدل ، خو په بدل کې به ډېر لږ سم او ډېر بیکاره، او متعصب عسکر راتلل البته ځیني عسکر چې زموږ سره یې ښه رویه کوله ښه راته بریښېدل، او مونږ به ورسره ښه اخلاق کول ، او ډېرو عسکرو به زمونږ په حال افسوس کاوه، او منل به یې چې امریکایې مشران موږ غولوي او بې ځایه مو استعمالوي، او په دړو غو سره یې موږ دوکه کړي یو، او وعده به یې کوله چې ددغه محبس احوال او د معتصبه امریکایانو وحشي عمل به دوي میډیا ته باسي، او نړۍ به وربانديي خبر وي، چې همداسي به شاید شوي هم وي، په عسکرو کې یو یوداخلاقو، انساني پوهي او ادراك خاوندان هم پیدا کیدل، یوه ورځ یو مشر عسکر ما ولید چې دامریکایانو په وحشي سلوك باندي یې ژړل ، او تر سترګو یې رپ، رپ اوښکي تویېدلې او دابه یې ویل چې مونږ ظالمان یو، خو ځان به یې مجبور او ناوسه ښود ، دا په هغه پېښه کې و چې زه به یې انشاالله په لیدلو واقعاتو کې یادونه وکړم، هلته به همیشه دري ډلي عسکرو په مجموع کې چې سره، سپین، غنم رنګه، او تور و ، غنم رنګه اکثره په سلوك او اخلاقو کې ښه او څه شفقت به یې هم درلود، طبعي تعصب یې نه درلود که به څوك پکښي پیدا کیدل کم به و – تور اکثره پسونو غوندي ناپوهه، لټان، او دمریانو غوندي طبیعت یې درلود ، کسالت یې ډېر و، خوراك، خوب به یې تر اندازې زیات کاوه، اودتعلیم سویه به یې ټیټه ښودله، او اکثره یې دخوارو غریبو هېوادونو مهاجرو ، متعصب خلك کم پکښي پیدا کیدل خو که به یو هم متعصب پکښي پیدا شو بیابه تر ډېرو بیکاره او بد وضعیت به یې کا وه لکه یوحیوان غوندی زماپه اټکل (سرو) به

استعمالول ، له امریکایي سرو سپینو عسکرو څخه به یي ډېر شکایت کاوه، ښکنځل به یې هم ورته کوله، او ویل به یې چې سره ډېر بد او ظالمان او خود پرسته ( ځان پالي ) خلك دي، پیسي او قدرت یې انحصار کړي دي، او مونږ ته چندان اعتبار نه راکوي او په بده اوخواره سترګه راته ګوري، خو په عین حال کې به له سرو څخه سخت ویریدل چې کله به یې زموږ سره خبره کوله، او یا به یې څه ځیزونه راکول نو شا وخوا به یې کتل،اوځاربه یي کاوه او بیا به یې څه ویل اوکول- اما سره چې دحکومت اصلي او داعتماد وړخلك وو اکثرو یې څه تعصب درلود، اخلاق به یې که څه هم ظاهري نورمال و، خو له چل او فریب څخه ډك، عمیق، او د دروغو ښه استاذان وو، او داسي معلومیدل چې نور عسکر به یې تعقیبول اکثره یې لوړ رتبه خلك و ، خو که به یې رتبه هم ټیټه وه تر غنم رنګه او تورو به معتبر او با صلاحیته ښکاریدل،او محققین به اکثره دوی و ، په لوړ رتبه خلکو کې هم لومړی غوندي و تعلیمي سطحه یې لوړه ښوده او اقتصاد یې ښه معلومیده والله تعالي اعلم!!

او څلورم لړ خلك و ، چې په هره ډله کې یو یو پیدا کیدل چې امریکان انډیان ورته وایي. دا اصلي امریکایان دي چې دامریکا له کشف څخه وړاندې یې هلته ژوند کاوه، البته وحشي او ددنیا له رسم او کلتور څخه لري پاتې و، چې تر اوسه پوري دامریکا په ډېرو برخوکې ژوند کوي، اکثره نشه یان معتاد لټ اوبیکاره خلك و او تعلیمي سطحه یې ډېره ټیټه وه، چې پخوا کې دبرتانوي امریکایانو په لاسو اکثره ووژل شول مځکي تري ضبط شوي، او باقي یې غرونو ته وتښتیدل، چې بیا به یې پر امریکایانوچریکي حملي کولي، چي وروسته له ډېره وخته تر قوماندې.لاندي شول ، او اوس په هغه منطقو کې اوسي چي ټکس یې نه

وي او دحکومت لخوا ورته بخښل شوي وي، ددوي پر صادراتو او وارداتو باندي محصول نشته او له کسالته ډك ژوند کوي، په امريکا کي ډېر بي اعتباره و ، په حکومتي چوکيو کې ورته ځاي نه و، او نه يې په کابينه او پارلمان کې استازي درلودل ، خو په دې څو کلونو کې ورته څه لږ حق ورکول شوي دي، په سنا او پارلمان کې هم څه سيټونه لري، خو دوي ځانونه مظلوم ښيې او دامريکا له ملي حقوقو څخه ځان محروم بولي.

دا هغه عسکر دي چې مطلق ټولو يرغلګرو امريکايانو ته ظالمان او بي رحمه وايې، او تر حده زيات يې بد راځي ، تر اوسه پوري يې دامريکايي الاصلو خلکودښمنان او قاتلان، او دنوي دنيا غاصبين بولي، دې خلکو زموږ سره ښه ګوذاره کوله، او موږ ته يې دمظلومانو په سترګه کتل او کله خوبه يې دتسلي خبري هم کولي.

## دګوانتانامولومړی کمپ

لومړی ځل چې موږ هلته بوتلل شوو یو کمپ ته وروستل شوو چې اته بلاکونه او یو انفرادي یعني دکوټه قلفۍ بلاك يې درلود ، چې په هر بلاك کي يي اته څلويښت قفسه و دوه دګرځيدو ځايونه څلور ساده حمامونه يې درلودل، خو انفرادي بلاك بيا څليرويشت قبره درلوده، چې عرض طول يې په اندازه دقفسونو وو، خو شپږ واړه خواوې يې په اوسپنيز ديوال جوړ شوي او بند شوي و، شاه ته يې يوه پيکه هينداره درلوده چې شپږ په دولس انچه کې وه، او مخ ته يې دهليز ته يو کوچنی کلکين درلود ، چې په سيمانو او بيا په هنداري پوښل شوی و، او يو دډوډي ورکولووړوکي سوری يې درلود چې يواځې د ډوډۍ پروخت به يې خلاصاوه، او بيا به يې بنداوه، عسکر به يې بد اخلاقه و، او ډوډۍ به يې هم تر نوروبلاکونو کمه ورکوله، ديوه بلاك اوبل بلاك ترمنځ خبري بندي وي، که به چا کولي نو سزا به يې ورکوله، داغوستلوکالي يې سره رنګ و، خو ترکاليو لاندي به يې هيڅ نه ورکول ، دا غوستلو جامې ډېري پنډي او زيږي هم وي چې داکثره وروڼو پوستکيو به ورسره حساسيت پيدا کاوه، په کوټه کې د هر بندي لپاره لومړی ځل د دوو نازکو توسانو، يوه پټو، دوه دځګ ګلاسونو، يو داوبو بوتل، دځان دوچولودوه دسمالونه ،يو وړوکي پلاستيکي فرش، يو دغاښونو برس، او کريم، يوه قرآنکريم اود يوه ماسك اجازه وه، دسزا په وخت کې به يې ورته يواځي دخوب پلاستيکي فرش پر ېښود.، نور به يې ټول شيان ترې اخيستل خو اکثره وخت به سزا، سزا، سزا وه ځکه عسکرو نه غوښتل چې بندي په راحت کې ووينې.

ددویم کمپ په جوړیدو سره شرایط بدل شول دکمپ مسؤول جنرال بدل شو، خلك په درجو ووېشل شول سختي او عذابونه ډېرشول ، دکوټه قلفي بلاکونه دري نور هم زيات شول ،دتیریدو وخت یې زيات شو، او په هر څه به خلکو ته سزا ورکول کیدله، مذهبي کتابونه ختم شول ، دړیرو خرییل شروع شول ، او دتحقیق په وخت کې به هم له خلکو سره ښه چلند نه کیده،دبندیانولپاره له لومړي څخه بیا تر څلورمې پوري درجي جوړي شوي چې اکثره خلك به په څلورمه درجه کې و ، دڅلورمي درجي بندي لپاره یواځې د یو کوچني پلاستیکي دناستي دفرش اجازه وه او بس، نور به په یخه اوسپني فرش ویده کیده او څه به یې نه ورکول چي ځان پرې تودکړي اوهډوکی پری نرم وساتی.

دارزګان ولایت دچارچینواوسیدونکي مرحوم ملا عبدالغفور چې تر ډېره وخته زما ګاونډي پاتې و، همیشه به په سزا، سزاکې و، او له امریکایانو سره به یې تعصب دهري ورځې په تېریدوسره ډېریده، ډېر خله به یې ماته ویل، چي دا ظالمان دبخښلو ندي له یوه عسکر سره یې هم دخبرو توان نه درلود، او کله خو به یې عسکرو ته دچړي په ډول په غاړه لاس تیراوه، او دانتقام خبري به یې له خولي وېستلې همدارنګه یې امریکایي ترجمانانوته بد ویل ، که څه هم ما ورته ډېرډېر ویل چې وروره خوله ونیسه او ناوړه خبر مه کوه، اوس ددي خبرو ځاي او وخت نه دي ګټه نه رسوی سزادرته ډیره وی، هم داسي دسزا په وخت کې دردمن خوشې اوازاد شو چې لږ وخت وروسته مې دده دشهادت واوریدل او ځم دي ته ورته دملا شهزاده پېښه وه چې هلته مور په محمدیوسف پيژانده،ملاشهزاده دکندهارولایت دپنجوایي ولسوالي دزنګي ابادکلي اوسیدونکي و ، اوهم داسي ملاعبدالغفور غوندي دردمن خوشي شو چي لږوخت وروسته يي له شهادت څخه خبرشو. الله

جل جلاله دي ترې راضي شي که به څوك له امریکایانو سره دښمن هم نه و،، نو دامریکایانو دداسي ظلم او ناروا عمل سره، به یې ددښمنۍ عقده اخیستله، چي ښه مثال یي داوسني حکومت ملاتړي و چي دامریکایانو راتللوته یي لبیك اوښه راغلاست ووایه اوورسره یي ترخپل وسه همکاري کړي وه دزړه له کومې اخلاص یي ورسره کړی و، خوچي کله ګوانتانامو ته راوستل شول په خپل تیرعمل نهایت پښیمانه و دانه چي یواځي پښیمانه و ، بلکې ددښمنۍ پوره عقده ورسره پیداشویوه.

. دوهم جنرال چې بیا عراق ته تبدیل شو ملر یادیده،ملر ډېر متعصب کافرظالم و، دسزا ډېر اسباب ده برابر کړل، هر عسکر ته یې واك ورکړي وچې څه یې زړه وغواړي هغه وکړي، او ایکو کمپ چې بیخي دتنها او تاریکو قفسو خاوند و، ده جوړ کړ، دایکو کمپ ډېر مختلف ځایونه درلودل، مثلایوه میانه کوټه وه او په هغه کې دننه بیا قفس و، چې مخ ته یې حمام و، او تر دوو دروازو شاته به بندي و، چې یواځې په یوي ریموټ کامري به تعقیبدل، هیڅ به یې نه لیدل او نه به یې د هیڅا رږغ اوریده ، سهار او ماښام به ورته نه معلومیده شپه اوورځ به ورته یو ډول و ، چې ډېر ورونه به دداسي سختي انزوا څخه په نفسي او روحي مرضونو مبتلا شوه.

احمد ورور چې مغربي الاصل و، او په انګلستان کې یې له ډېره وخته دمهاجر اود پنا غوښتونکي په څیر ژوند کاوه، دده په قول پاکستان ته داسلامي زده کړي په خاطر راغلي و، چې بیا د پاکستان او امریکا دانسان پلورني د سوداګري په نتیجه کې ګوانتانامو ته رسیدلي و.

له ما سره په کندهار کې ګاونډي و، او په انګلیسي ژبه یې رواني خبري کولي دا له هغو خلکو څخه وو، چې په کندهار کې نږدي یو

خروار ځنځیرونه ترې چا پیره شوي وه، دغه ورور له ډېرو سزاګانو څخه په روحي او عصبي ناروغیو اخته شو، چې وروسته به په ارواییي لحاظ ډېروخت له کنترول څخه وتلی و، خو بیا به هم سزا ورکول کیده، ان تر دې چې داسي وخت راغی چې په ځان سره به نه پوهیده او دماغ یې له لاسه ورکړی و، کله چې ګوانتانامو ته ولاړ نوریې هم حالت خراب شو او دامریکایانو عکس العمل به یې انتقامي غوندي ښوده، له ډېره وخته وروسته په یوه انفرادي کې چې دسزا لپاره جوړ شوي و زما ګاونډی شو، د شپې په نیمایي کې راوستل شو، خو په دغه ټوله شپه کي مي خوب ځینې ونکړ ، که څه هم زما او دده تر مینځ پنډاوسپنیز دیوال موجود وو ټوله شپه یې نعتونه ویل، او دقرانکریم تلاوت به یې کاوه چې اکثره به یې غلط هم وایه او په زوره زوره به یې نصیحت کاوه، دده په عقیده چې له سلګونو سوګندونو سره بدرګه کیده، دا کال دمهدي (رح) دظهور کال دی او په دې سره یې دځان تسلي کوله، خو په دویمه ورځ یي بیا عسکر په پښقاب چې له خوړو ډك وو وویشت او بیرته ایکو کم ته دسزا لپاره بوتلل شو، دې وروړنږدې دري کاله په ایکو کې تیر کړل ، ایکو هغه تنګ ځای دی چې ددوو کوټو شاته یا په مینځ کې کوچنی قفس و، چې هیڅ به دې ځوك نشوای لیدلاي او نه به دې دچا ږغ اورېدلي شواي، او نه به پکښې ګرځیدلاي شوای ، او که به دې هر څومره په زوره زوره چیغي او ناري وهلي نو هیچا به دې اواز نشواي اوریدلي، یواځې په یوه ریموټ کامري سره به عسکرو تعقیبولې چې دضرورت پر وخت کي به دې دکامري مخ ته لاس ښوراوه نو عسکر به درته راتلل او بس، نه کتاب نه کتابچه وه چې سړي پرې ځان بوخت کړی واي ، یواځې ته، څلور دیواله او ډول ډول فکرونه چې اخر کار یې لیونتوب دی، دغه ورور که څه هم با سواده پوه سړی و، خو هر څه یې له

لاسه ووتل امریکایان په دي ښه پوهیدل چې دغه ورور د ډیفریشن په وروستي پړاو کې دی او ځان یې له کنټروله وتی دی، خو بیا هم سزا او عذاب ورکول کېده او بي رحمه سلوك ورسره کیده. دي ته ورته طارق، عبدالرحمن، ډکتور ایمن، چه اصلاً یمني وه پاکستان ته دتعلیم لپاره په قانوني لاره راغلي و، او بیا افغانستان ته له پاسپورت او ویزي سره راغلي و، په کابل کې یې دالوفا په موسسه کې دمعالج طبیب وظیفه درلوده. او په هیڅ قانون کې طبیب نه بندي کېږي خو دکتور ایمن سعید باطرفي تر اوسه بندي او بالاخره لیوني شو. نوموړي دهغوکو ډاکتر و، له ډیرو افغانانو سره یې طبي مرستي کړي وې خو نتیجه ....؟ او ډیر نور ورونه و چې حواس یې خراب شول او دلیونیانو په څیر به یې ژوندیکاوه، خو بیا هم د سزا له جدوله ونه وتل. سره لدې چې لیوني مرفوع القلمه دي او دالله (ج) له خوا مسؤولیت نلري خو هلته همداسي عمل جریان درلود.

## دډلتا دوهم او دریم کمپ:

تقریبا تر کال ۲۰۰۳ پورې زه په همدغه کمپ ډیلتا بلاک پنځلسم قفس اوګولډ بلاك اتم او پنځلسم نمبر قفسونو کې پاتي شوم، چې وروسته دویم کمپ کلو بلاك، اوه دیرشم نمبر قفس ته انتقال شوم، کلو بلاك نسبتاً تر نورو بلاکونو ماته خوند راکاوه، ځکه کله ناکله به مو ددریاب تماشاه کوله، او کله به مو ددریاب کښتۍ لیدلي،کلوبلاك تقریبا دریاب ته پنځوس متره مصافه درلوده، څه موده وروسته بیا انفرادي ته بوتلل شوم چې تر ډېره وخته بیا هلته وم، په محبس کې به معمولاً دریوشفتونو کار کاوه، چې بیا دوه شفته شول، لومړی په اونۍ کې یوځل غسل او یو ځلي دګرځیدلو ځاي ته بیول کیدو، چې یواځې تر پنځلسو دقیقوپورې وخت راکول کیده، خو لاسونه به مو تړلي و چې وروسته بیا نیم ساعت شو، او په اونۍ کې دوه ځلي اوهم به کالي یوځلي په اونۍ کې راته بدلیده، تر ډېره وخته دنوکانو دپریکولو، او دماشین یعني دسرخریيلو دماشین انتظام نه و، چې بیا،وروسته په اوني کې یوځلي ورکول کیده - خوراك به عسکرو وېشه او په لویو شنو صندوقوو کې به راته، کله چې عسکري عاجل خواړه په ګرمو خوړو تبدیل شول، بیاهم دورځي به عسکري کڅوړي راکول کیدي، او بیا دسهار او ماښام ډوډۍ ګرمه او دغرمي هغه هم‌هغه عسکري کڅوړي وي، چې وروسته تر کلو په ګرمه ډوډۍ تبدیل شوه، خواړه به البته کافي وه خو عسکرو به کم وراچول، او څومره چې به یې زړه غوښتل هغومره به یي راکول ، داسې وخت هم و، چې په یوه میاشت کې به یو ځلي هم په نس نه مړیدو، خو کله به چې څه زړه سواندي عسکر و نو بیا به یې تر اندازې زیاته ډوډۍ راکوله چې بیا به هم دناروغۍ سبب ګرځیده،

دوېش قانون ، او دډوډۍ اندازه معلومه نه وه، هرڅه په موظفو عسکرو پوري اړه درلودله، په ځګن قابونو کې دخوراکونوتوزیع کیده، یوه پلاستیکي کاشوغه به هم ورسره وه چې یواځې دیوځل لپاره استعمالیدله، خو ډېر ځله به ورونو شك کاوه چې هم دا ظروف څو ځله استعمالوي، نو هغو ورونو چې به شك کاوه قابونه کاشوغي ګیلاسونه به یې ترخوراك وروسته ماتول- دسهار له خوا به یوه له ځګ نه جوړشوي کوچني ګیلاس شیدي، او یو ګیلاس یخ چای هم راکاوه ، البته لومړۍ ګرمي وي او وروسته بیا په یخو تبدیل شوي، ډوډۍ ډول ډول ډولونه درلودل، غوښي به هم پکښي وي لکه کب، چرګ، دغويې غوښه، بینډۍ، سبزي،لوبیا ، ګولپي، پتاټې( الو)، وریجي، هګۍ، مصنوعي پاتي، وریجي، پاتي څلور قسمه دسیلو ډوډۍ، اونورڅه لړ شنه چې نومونه یي زما نه وه زده البته دغه ټول شیان به یې په نوبت پخول خو دومره بي مزي اوبي خونده چې حدیې نه و، صرف په اوبو کې به یې ایشول اومې (خامې ) غوښي کلکي چې له خوړلو سره به یي قبض حتمي و، او کب خو به نو دومره بدبويه وو، چې په بلاك کې به ورته طاقت نه کیده، کب خو طبیعي بدبويه وي، خو چې کله په اوبو کي وایشول شي، او دغوړیو مخ ونه ویني نو بیا خودي خدای سړي ځیني وساتي، خو بیا هم موږ وږي وو ، دچرګ دغوښو سري لشکي به هم داسي سري ښکاریدي، لکه تازه چې ویني پکښي ګرځي، وریجي خو به دومره لږ وي چې نصیب الله ورور خو به په یوه ګوله ټولي تمامولي او دویمي ګولې ته حاجت نه پیدا کیده، ډوډۍ دري څلور ډوله وه چې یو ډول یې یواځې تقریبا یوه ګوله کیده ماشوم هم نه باندی مړیده، دیادوني وړده چې دري میوي به یې په ورځ کې راکولي چې تر ټولوشیانوبندیانوته غنیمت وو، زموږ لپاره څکه غنیمت وو چې هغوي

به دډوډۍ ځاي نیوه، او دسهار لخوا یو ګیلاس شیدي وي چې هغه هم زموږ په مرېنت کې پوره مرسته کوله خوکه به عسکر متعصب وه نوبه یي داسې خرابه ولی چی دخورک به نه وی، او نوره ډوډۍ یې اکثره وخت ډېره کمزوري وه او که دپنځو نفرو استحقاق یې یوه سړي ته ورکړی واي، نو ممکن وربانديي یې صبر شوی واي، په ځانګړي ډول دسرو امریکایانو په نوبت کې، دلمانځه لپاره اجازه وه، اذان به مو کاوه، خو کله کله به امریکایانو عسکرو تمثیلول، یعني له اذان سره به یي ناري وهلي،د مکي نښان پرتخته لیکل شوي وو،دجماعت لمونځ مولوړی نه وو ځکه صف مونه برابرېده ځیني وروڼو چې په فقه کې معلومات درلود دعذر له کبله یې دجماعت کول جائز وګڼل، چې وروسته مخکي وروړ جماعت راکاوه او موږ به هر یو په خپله خپله غرفه کي دجماعت نیت کاوه، خو ځیني وروڼه یې بیا خلاف و ، او دصف برابرول یې واجب ګڼل او په خپله غرفه کې به یې لمونځ له خپل ځان سره یواځې کاوه، او دتهجد اذان هم په دغه شکل وه چابه کاوه اوچابه نه کاوه، خو په کوټه قلفیو کې بیا دجماعت کول تردي هم سخت وه او کله ناکله خو به وخت هم نه ورته معلومیده او بي وخته لمونځونه به یې کول، په هر بلاك کې کوچنۍ ګویا نصب شوي وه، چې داعلان په وخت کې به یې استعمالوله او کله کله به یې ریکارډ شوي اذان هم پکښي کاوه، چې ډېر ځله به یي دسهار اذان مازیګراودمازیګردهم بې وخته کاوه او دوروڼو دغلطۍ سبب به ګرځیده، خو بیا به موږ دلمانځه وخت په سیوري معلوماوه او په شرعي شکل به مو خپل لمونځ ادا کاوه.

ددریم کمپ په جوړېدو سره مشکلات نورهم زیات شول، ډوډۍ کمه شوه، او کیفیت یې نورهم خراب شو، په سزاکې نوره سختي هم راغله، مثلاً دکیوبیك په نامه بلاك جوړ شو چې تر ټولویې سزا سخته وه،په دغه

بلاك کي به بندیانو په یوه نیکرکي ژوند کاوه، دننه په قفس کې به یې هیڅ نه درلودل چې وایې غوندي او یایې پرځان واچوي په یخ او په ګرمۍ کې به په یخه او ګرمه اوسپنه بي کالیو ویده کېدل لمونځ به یې په لوڅ عورت سره کاوه، اود یو بل په منځ کې حجاب نه و، ډوډۍ یې ډېره کمه وه، او دعسکرو له بد سلوك سره مخامخ وو، بیت الخلا ته دتګ په وخت کې یې حجاب نه درلود، او په بي سترۍ کې به دحاجت ځای ته ورتلل، خوب به یې اکثره وخت په ناستي کاوه، او دډېر یخ په وخت کې به یې په دغه تنګ قفس کې ټوپونه وهل چې دا دتودیدو یوائیني طریقه اوچاره وه، خو کله کله به تردي هم نور سختیده چې دتشناب اوبه به یې دشاه دخوا پربندي کړي، او تشناب کاغذ به یې هم نه ورکاوه چې وروسته به بندي دومره په تکلیف شو چې اوبه به یې نه څښلې، ډوډۍ به یې نه خوړله ترڅو تشناب ته ضرورت پیدا نکړي، خو کله چې به حاجت ته ولاړ نو له بدبویۍ څخه به یې ټول بندیان به عذاب کیدل او دځان نظافت یې بې له لاسه په بل څه نشوای کولاي، او بیا به یې دلاس پریمینځلو ته اوبه نشوې پیدا کولی، ډوډۍ به یې هم په پلیټ کې نه ورکوله مجبور وو چې په لاس کي یې واخلي په هغه لاس چې بېله اوبو یې ځان پرې پاك کړی و، څومره وحشي او له انسانیت څخه لري سلوك او بیا دبشر حقوق اونړیوالي ډرامې!!!

ددې سزا وخت به یې تر یوي میاشتي کم نه و چې بیا به یې تر څلورو پنځو میاشتو پوري دوام کاوه، خو ځیني ورونه چې دماغونو یې ټکان خوړلي وو او ځان به یې نه شو کنترولولاي، له عسکرو سره به یې ښه معامله نکوله نو تر ډېره وخته به پکښې پاتې کېدل ، او بل بلاك بیا مشخص دلیونیانو لپاره جوړ شوي و، مخصوص ځایونه او مخصوص ډاکټران یي درلودل،اکثره به هغه کسان پکښي میشت کیدل چې له

ډېرې تنګسې او تکلیف څخه به یې دځان وژنې تکل کاوه، دځان وژنې پېښې قریب هره ورځ پېښېدلې، چې بیا به یې په ډیلتها بلاك کې په ځنځیرونو ټینګ تړل، او یا به یې په مخدره توکیوسره نشه او ارام ساتل ، چې د ډېر خلك ددوا دډېر استعمال ، او دسختو جکشنونو( پېچکاریو) له کبله معتاد شول، او بل به هغه افراد ورته بېول کیدل چې دامریکایانو په جاسوسي به بد نام شول ، نو بیا به نورو وروڼو تنګول او په بلاکونو کې به یې نه پرېښودل ښکنځل به یې ورته کوله بدبه یې ورته ویله ناړې (لاړې ) به یې پرې توکلې، خوب ته به یې نه پرېښودل، خبرې به یې ورسره نه کولې،ترڅویاتوبه وباسی اویابل ځای ته ولاړسی چې له ډېر تکلیف څخه وروسته به یې امریکایانو ته ویل چې لدې ځایه یې تبدیل کړې، او که به یې نه تبدیلول نو بیا به یې ځانونه ځړول چې دغه ورته دجاسوسي ښه ګټه وه چې خوندیې ترې اخستی او بیا به دلیونیانو بلاك ته بیول کیده چې دا بیا په څوځله ددوي دجنون یا لیونتوب سبب ګرځیده (مکوه په چا چې وبه شي په تا) چې لدې جملې جاسوسانو څخه څه افغانان هم وه سردار، او فدا، د زرمت اوسیدونکې، او انور دکونړ اوسیدونکې چې بیا مرتد هم شول ، خدای او رسول ته به یې بد نسبتونه کول، او دقرانکریم دسپکاوي هوډ یې هم وکړ چې وروسته دبندیانوپه ډیراصراردامریکایانو له خوا ترې واخستل شول، خو انور بیا ویل چې توبه یې وکښله اوداوعده یې وکړه چې بیابه داسې نه کوي په خپلوکړوپښیمانه سو، دغه خلك چې په زرمت کښې نیولې شوي او عمرونه یې تر اتلسو کلونو کم هم وه پر هرڅه معتاد اونشیان و، چې دکم عمری له کبله ددین څخه ګرځیدلې و داکسان په زرمت کې دڅمودنامی قمندان افراد و چې دامریکایانوسره یې کارکاوه. والله اعلم.

څه عراقیان وچې شمېر یي پنځه تنه و علي، شاکر، ارکان، محمد، او یو بل چې نوم یي یاد ته نه راځي، یو یمنی و ابو ثرده نومیده، اویود سوریي وه عبدالرحیم نومیده ، دامعلوم کسان و خو په افغانانوکي دري نور نفر هم و چې دجاسوسي اشتباه پري کیدله، او په عربو کې هم و چې موږ به یې په ګاونډیتوب سخت خپه کیدو، او چې کله به راڅخه لري شول نو بیا به مورب العالمین ته دشکر سجده کوله، او ډېر به یې قول او عمل ته متوجه وو او له خپلو خولو سره به مو هم ډېر پام کاوه، خو دیادوني وړده چې همدغه ټولي چې په دروغوسره یي خلکوته مشکلات جوړول په پای کي ډېر ذلیل شول چې امریکایانو هم پرې باورنه کاوه ځکه معلومات یي موثق نه و ، او تر موږ دوي ورسره ډېر په تکلیف ېشول ، دغه کمپ دډلتا کمپ په نامه یادیده ، او دغه منافقین تر موږ ډېر په تکلیف شول که څه هم د صلیب نشان یې په ځیګرونو ځوړندکړ،ږیري یي وخریيلي اوسرونه یې په امریکایي موډجوړاوبرابر کړل خوڅه ورسره وسوه.......ددغه کمپ ترمیم به همیشه کیده اونوي نوي ځایونه به په کښي جوړیدل چې دوخت په اوږدو سره یې پراختیا موندله، ددوي له پراختیا څخه به موږ دا اټکل کاوه چې دا کار لنډ مهالی (موقت) نه ، بلکې دلوي پلان مفهوم لري او کیدای شي دا اراده تر ډېره حده محدوده پاتي نشي والله اعلم.

## پنځم او شلورم کمپونه

ددي با وجود دوه نور کمپونه جوړ شول ، چې یویې ډېر سخت اودعذاب ځاي وو، او دویم یې ډېرپه امریکایي بندکي د راحت ځاي و، دراحت کمپ د شلورم کمپ په نامه یادیده چې دژوند ډېري اسانتیاوي یي لرلي، او سخت کمپ دپنځم کمپ په نامه یادیدي چې دژوندقریب ټول شرایط پکښي ناانساني وه ، مثلاً کله چې پنځم کمپ جوړ شو ددې عمومي کمپ له ساحي څخه وتی ِو، اوازه به یې ډېر سخته وه، او محققینو به هم دبندیانو تر غوږو دسختو شرائطو ازانګي ورتیرولي، اوپه کال ۲۰۰۳ دجولاي په میاشت کې یې اویا نفر بندیان په ناڅاپي ډول دکمپ څخه ورته وروستل،ترډیره حده موږ نه پوهیدلو چې چیرته به یې بیولي وي، چا به ویل بل ځاي ته انتقال کړای شول ، اوچا به ویل خوشي شول ، چا به څه ویل او چا به څه، خو ما له یوه عسکره څخه وپوښتل چې حال راته ووایې ځکه ډیرځله به دې عسکرماته په غلا دنړۍ معلومات راکول، خوددې واقعي څخه یې بخښنه وغوښت ، او ویل یې چې موږ ټولو ته یي قسم راکړي دي چې بندیان خبر نکړي، خو بیا هم دلاس په اشاره سره یي وپوهولولم، خپلي پنځه ګوتي یې زما دقفس پر پنجره غوړولي کښېښودي، اوراته ویل یې زما لاس ته ګوره زه پوه شوم چې څه معني لري، خو دا پټه غلا تر ډیره وخته پټه پاتې نه شوه چې دلږ وخت په تیریدوسره بیرته لوڅه اوبربنډه شوه، په لومړی ځل کې اکثره عرب وروڼه بوتلل شول چې قریب دیارلس افغانان هم پکښي و، لکه ملا فاضل محمد دارزګان، محمد قاسم فرید دزرمت، معلم اول ګل دجلال اباد، شاه ولي دکندهار، محمد نبي دخوست، او عبدالکریم دخوست، حاجي روح الله د کونړ، عزت الله دکاپیسا، چمن دلوګر،

عبدالجلیل دهلمند، نورالله نوري دقلات شاه جوي، معلم محمد ظاهر دغزني، چې زما تر راوتلو دمخه محمد نبي ، محمد جواد، محمد قاسم، معلم اول ګل، شاه ولي، عبدالرزاق، عبدالجلیل، عبدالکریم، عزت الله، بیرته تر یوکال وروسته راتبدیل شول ، عبدالرزاق ،شاه ولي دکندهار اومعلم اول ګل نورو کمپونو ته راغلل، خو حاجي ولي محمد صراف دبغلان ملا خیرالله خیرخوا دکندهار عبدالحلیم دقلات او روحاني دغزني، ورته وروستل شول چې ټول اته کسه زما ترخوښي کیدو هلته پاتي و . الله دي یې مل شي

دپنځم کمپ شرائط څه سخت و خو دالله ج په فضل او توفیق سره ځیني وروڼه پوره ډاډه او خوشحاله وه، په مجموع کې د ټولو وروڼو معنویات لوړ و ، شرائط یې که څه هم سخت بی رحمانه، ظالمانه دبشرضد و، لومړې بندي کوټي وي چې دلمر رڼا او یا دهوا لپاره یې هیڅ کړکۍ اوهنداره نه درلودل، او یو کوچني سوری هم نه و چي تازه هواورته ورسي، یوه جاسوسي کامره دچت په سرکي نصب شوي وه او یو دسمېنټو وور تخت دکوټي په منځ کې جوړ شوی وو، تشناب، خاك انداز او داستعمال داوبو کوچنۍ نلکه هم دخونې دننه جوړشوي و ، فرش او دیوالونه یې دسمینټو له خښتو جوړ شوي و، دروازي یې په برقي ریموټ خلاصیدلې، او تړل کېدلې، ډوډۍ ،دوا، ځنځیرونو دتړلو لپاره یې ډېر کوچني سوري درلودل، چې د ضرورت پروخت به یې خلاصول او بیرته به یې ژر تړل ، صرف دیوه قرانکریم اجازه به یې درلودله، دډوډۍ ورکولو طریقه لومړی ډېره سخته وه، دمخامخ کیدو اجازه یې نه درلودله او مخ به یې دعسکر طرفته نه کاوه دشاه دخوابه یې ډوډۍ اخستل چې تر ډېره حده به بندي خپل لاس سوري ته دننه لیدلو په وجه نشوای برابرولاي، او که به یې برابر هم کړ نو ډېر ځله به قاب

تري په مخکه چپه کيده، که به چپه هم شو نو نوره ډوډۍ به يې نه ورکوله، تر ډېره وخته يې دوتلو حق نه ورکاوه، که به يې ورکاوه هم نو په اونۍ کې يو ځل به و ،دګرځيدو ځای يې د ګرځيدو لپاره کافي نه وو، يواځې دلمر وړانګي به غنيمت وي، دوابه يې په ډېر تکليف او تر ډېر فشار وروسته ورکوله او که به ورکول کيده هم نو ګټه به يې نه کوله، ملا فاضل محمد چې دمعدي سخت تکليف يې درلود،يو کال يي مکمل اومسلسل وړانديزونه کول خو چايې وړانديزونه ونه منل، او نه يې ورته دوا ورکړله چې په پای کې مجبور شو او دډوډۍ نه خوړلو اعتصاب يې پيل کړ شپاړلس ورځي يې دډوډۍ د نه خوړلو، او داوبو نه څښلو هړ تال ته دوام ورکړ، چې وروسته ډېر ضعيف او ناتوان شو او دکمزوري نه بي هوښه په ځمکه غورځيدلی او لويدلی و، چې بيا د بيهوښۍ په حالت کې روغتون ته بيول شوی و ماته ملا فاضل محمدوويل چې ماته دعسکرو مشر د ډوډۍ خوړلو وړانديز وکړي خو ما ددوا غوښتنه تري وکړه او ددوا ورکولو په شرط مي ډوډۍ وخوړله، چې بيايې دپوره تداوي وعده ورسره کړي وه، ديادوني وړ ده چې د امريکايانو اکثره وعدي دچلونو دامونه اوهوايي درواغ وو ، او کله يې هم ورباندي وفا نکوله، دعسکرو معامله غير اخلاقي، او غير انساني وه او کله چې به يې تحقيق، او يا ميډيکل ته بيول نو سترګي به يې پلاستر کيدي، غوږونه به يې سخت په ګوشيو بنديدل، په خوله به يې ماسك اغوستل کيده، لاسونه او پښي به يې ټينګ تړل کيدې، او دوتلو په وخت کې به يې لاسونه دشاه له خوا ورتړل، چې په وروستي وخت کي يې څه شرائط لږ اسانه شول ، هر ورور چې به دپنځم کمپ څخه راووت يواځې هډوکي به يې پاتي وو له رنګ څخه به يې سړي ويريده ، رنګونه به يې بيخي تك سپين اوښتي وو او کټ مټ لکه مړي چې يې له

قبره را ایستلي شوی وي او بیایې پر پښو را روان کړی وي، یو ورور عرب چې نوم یې ابو حارث دکویټ اوسیدونکي وو زما سره ډېر وخت ګاونډي پاتي شوي وو، بیا پنځم کمپ ته بوتلل شو خو چې کله بیرته راوایستل شو مابیخي نه پیژانده، او څومره چې ورته ځیر هم شوم ځاي ته مي نشو راوستلاي بیخي یې له شکله ویریدلم او که په خوب کې مې هم لیدلاي واي یقیني و چې ځني ویرېدلي به واي، الله دي ټول وروڼه ددي ظالمانو له ناولو منګولو څخه په صحت او عافیت راوباسي امین، او دغه کمپ به وُروڼو دپنځم قبر په نامه یاداوه چې یقیني دژوندو قبرو، ماپه لاره کي له یوه ورورشیخ صابر څخه چي بوسنیااوسیدونکي و وپوښتل چي چیري یي هغه هم داسي جواب راکړاته ویي ویل دژوندوپه قبرکی چي یقیناً تراوسه مي په زړه کي پاتې سوزونکی داغ دی.

## څلورم کمپ

څلورم کمپ په دغه نيت جوړ شوی و چې کوم خلك خوشې کيږي هلته به ځي اوښه سلوك اومعامله به ورسره کوي ډوډۍ به کافي ورکوي ميوي به ډېري ورکوي ترڅو يې وزنونه بيرته نورمال اوپوره شي، په دغه کمپ کې چې ددوو سوو ۲۰۰ نفرو ظرفيت يې درلود دژوند شرائط يې ډېرښه برابر و او دعسکرو سلوك او معامله بيخي ښه او برابره وه، دغه کمپ پنځه بلاکونه درلودل او هر بلاك څلور غټې خوني او يو لوي سالون دحمامونو او تشنابونو لپاره درلود، او هري خوني دلسوکسانولپاره اوسپنيزکټونه اوڅه دلمانځه ځاي درلود ، او دبلاکونو مخته يې دګرځيدلو او ډوډۍ دخوړلوپراخه ساحه درلود چې په يوه وخت کې به شلو نفرو پکښې تګ راتګ کاوه او ډوډۍ به يې خوړله، ډوډۍ يې ډېره وه ديو ځايي ژوند اواوسيدلوامتياز يې درلود او لمونځ به يې په جماعت سره کولاي شواي، دورزش دځينو انواعو اجازه يې درلودله او دمنډي لپاره يې کافي مسافه درلودله، حمام يې په ورځ کې څو ځله کولی شواي او په هرې کوټې کي يې دوه دهوا پنکي درلودل په اونۍ کې يو ځل به يې نمائشي فلم که چاغوښته کتلای شواى خوديادوني .وړه چي ډيرو رونو يي مخالفت کا وه اويوځلي خويوعرب وروړتلويزون مات هم کړ ، په څو سپين ږيرو خلکوخو به يې مکتب ( ښوونځی) هم وايه دمکتب دځينو شاګردانويازده کوونکيو عمر به تر اويا کاله لوړ و، خو چې کله به مو تعليمي کتاب غوښت نو بيا به يې نه راکاوه، له ډوډۍ پرته يې نور امتيازات درلودل، مثلاً په اونۍ کې يو ځلي مغزك، خورما، عسل، کيك، شيريخ هاټ ساس،ماينس، چيك اپ اونور داسي خو په نورو کمپو کې به بيا بندي

ورور په یوه ګوله ډوډۍ پسي ځېږونه وهل او همیشه به یي دلوږي فریادکاوه.

دپنځو بلاکونو په منځ کي یي پراخه مسافه درلوده چي په ورځ کي به يي هر بلاك ته د ۳۰ دقیقو دوتلو اجازه ورکوله چي پکښي کوچني دفوټ بال، او والي بال، او یو میز د پینګ پانګ لوبو لپاره جوړشوي و او که به چا مندږه وهله نو ورته اجازه به وه خواکثره وخت به دبهرنیو کتونکیو او ملاقات کوونکیو له کبله کینسل کیده. دا هغه کمپ و چي په هره اونۍ کي به ملاقات کوونکي یعني تورستان، ژورنالستان، او دامریکایانو لوړ پوړي مقامات چي سناتوران هم پکښي شامل و راتلل. عکاسي به يي کوله او هرڅه به يي په تلویزیون او عکاسي کامرو عکاسي کول، البته موږ ته به اجازه نه راکول کیده چي خبري ورسره وکړو او یا ورته دنورو وروڼو دردوونکي حال ووایو، ددي کمپ جامي له نورو څخه په رنګ جلا وي رنګونه یي سپین و ، او زیر پیراهني به يي هم درلوده او وروسته دوي، بیا دري جوړي شول چي پریمینځل به يي موږ خپله هم کولاي شول، او دپریمینځلو لپاره به يي صابون،او شامپو هم راکول کیدله، دکمپ په لومړۍ افتتاح کي چي به ځوك دغه کمپ ته وروستل کیده نو دا خبره به په خلکو کي خپریدله چي فلانکي ایله خوشي شو، او موږ به هم دغه یقین کاوه، او امریکایانو به هم دا ویل چي هلته به ځوك تریوي میاشتي زیات نه پاتي کیږي، خو وروسته دا میاشت په کلونوسره بدله شوه،دامریکایانودا خبره موږته نوي نه وه ددوي داسي وعدي ډېري وي چي بیابه د وخت په تیریدو سره له منځه تللي اویابه ایکسپایرکیدلي دبلاک په مخ یوه دهدایت یاقانون پاڼه ځوړند سوی وه په هغه کی داسی لیکلی و ستاسی همکاری اواطاعت تاسی ته دژوندڅه امتیازات درپه برخه کړی دی داامتیازستاسو حق نه

دی ستاسولپاره نورتنګ اوسخت ځايونه سته که تاسی خپلی همکاری ته دوام ورنه کړی نو هلته به بوتلل سی معنی يي داوه چی دبندی لپاره حق نه وو اويوازی سزابدحالت دده حقو اوبس. بيرته به راشو دريم کمپ ته!!!

## دافغانستان وفد یا هیئت

دکلوبلاك څخه انفرادي بلاك ته بوتلل شوم او هلته مي ډېر وخت تېر کړ، یوه ورځ یوه عسکر راته وویل: تحقیق ته ځان تیار کړه له غرفي راوایستل شوم او یو داسي ځاي ته بوتلل شوم چې مخکي مي نه و لیدلي، دغرفې دمنځ په کړۍ پوري یې ټینګ وتړلم، او دمحقق دراتګ انتظار مي کاوه خو ومي لیدل چې څو تنه افغانان غرفي ته راغلل سلام یې واچاوه او شاه وخوا په چوکیو کې کښیناستل ځانونه یې داسي معرفي کړل ،چې موږ دافغانستان دحکومت نمائندګان یو دوه پښتانه یودکندهاراوبل دجلال اباد وو او څونفره پنجشیریان و ،کندهاري سړي یو ګیلاس اوبه راته راوړي، وروسته یې پوښتني شروع کړې ټولي هغه پوښتنې وي چې موږ به امریکایانو ته پري انکار کاوه او هغوي به دا سوالونه ډېر ډېر تکرارول اویوه امریکایې ښځه عسکره څو ځلي خوني ته راغله او په غوږ کې به یې څه ورته وویل او یا به یې لیکلي کاغذ ورته ورکاوه ماتر ډېره شك کاوه چې دا دافغانستان استازي نه ،بلکې یوه دسیسه غونډې ده، او دوي مي دامریکایانو ترجمانان بلل ،اوپه زړه کي به مي ویل که دافغانستان استازي یا وفد هم وي نو ددوي په دستور سره غواړي چې موږوغولوي اوترخولې موخبري وباسي کوم چې امریکایان پکښې شکمن وه سره لدي چې خبرې خلاصي شوي وي، له سوالونو وروسته څه مناقشه وشوه او ما ورڅخه څه پوښتني کولي اوغوښتل مي چې پوه شم چې رښتیادافغانستان دي او مطلب یې څه دی.

ما وپوښتل چې که ممکن وي راته ووایاست چې دڅه لپاره راغلي یاست ؟ دوي وویل غواړو تاسي ازاد کړو. ما وویل ښه خبره ده، خو دا

ستاسي اوسني عمل کتې متې تحقیق ته ورته دی نه خوشي کیدواوازادیدو ته. که څنګه؟دوی په ځواب کې ګنګوره غوندي شول او ما هم پسي پرېښودل ځکه ماته ددوی بېوسي معلومیده چي کله به يي خبره کوله نوشاوخوابه يي کتل لکه غله غوندی اوډیرپه وهم کی ، خو کله مي هم اعتماد نه کاوه چې دا به زموږ دهیواد نمائندګان وي ځکه صلاحیت يې ډېر کم معلومیده ، نور بندیان بیا تر ما ډېر شکمن و او ددوي سوالونو ته يې په ښکنځلو ځواب ورکاوه . البته دوي هم ډېرو بندیانو ته زړه نه و ښه کړی چې ورسره ووینې ځکه زینه پر زینه درسوایۍ اومنفي عکس العمل سره مخامخ کیدل ،بندیانوله دوي څخه څه غوښتل اوڅه هیله يې درلوده. بندیانو تسلي غوښته خواخوږي یې غوښته، دهېواد په حال يې ځان خبرول غوښتل، او له وفد سره يې شخصي دزړه خبري غوښتي خو وفد دا یوه خبره هم نه پر ځای کوله، په تحقیق کې تر امریکایانو سخت و له خبرو يې ځان نا خبره ښوده، له امریکایانو يې سره کومك کاوه نو ځکه د ناامیدۍ اومایوسي په وجه دبندیانو له سخت غبرګون سره مخ شول، ددوی لپاره به ښه دا وه چې دتحقیق پر ځای يې دبندیانو داحوال پوښتنه کړې وای، دمحبس له وضعیت څخه يې لږ ځان خبرکړي وای تحنې، دخوشي کولو اطمینان ، دهیواد په عمومي حال ددوی‌خبرول، له کورونو څخه په احوالونو وروړلو، دخواخوږي احساس او په شخصي توګه ور سره غم شریکي تر سره کول ، نه داچي دامریکایانوپه نیمګړتیاووکي يي ورسره مرسته کړي وای زماپه نظرپه امریکایانوپلورل اوپه لاس ورکول کافي و . خو دا هغه څه و چې دوي به نه غوښتل او یا به يې نه شوای کولي. والله اعلم

څو ورځي وروسته بیرته لومړی کمپ ته انتقال شوم ، په ۲۰۰۴ دجون دمیاشتي په شپاړلسمه څلورم کمپ ته انتقال شوم چې هلته بیا تر یوه کال او څو میاشتو پوري میشت وم.

## څه لیدلي واقعات

په لومړی دویم دریم کمپونو کې مو ډېر څه لیدلي او اوریدلي دي ځوریدونکی هیښونکی غمژنه ونکی ربړه ونکی ،په دغه دریوکلواوشپږمیاشتوکي دډېرو ستونزو سره مخامخ شوم، ډېرې ناوړي،او ناخوالي مو ولیدلې او دډېرو نادرو په اړه مو واوریدل چې اکثره یې داسلامي، او غیر اسلامي قوانینو مدني، اوغیر مدني،ملي، او بین المللي حقوقو څخه خلاف وي.

په کال ۲۰۰۳ کې د روژې مبارکي میاشتي ته دوي ورځي پاتې وي، ځینو امریکایي لوړپوړیو موږ ته وویل چې دوي به د روژې دمبارکي میاشتي په احترام اومناسبت تاسو ته ډبله ډوډی درکوي او دروژه ماتې په وخت کې به پنځه خرماوي او یوه وړه قطي عسل درکوي، که څه هم دروژې دمبارکي میاشتي به مناسبت دا لږ شي و، خو مونږ ته ډېره ښه اوغټه خبره معلومیده او ورباندي ډېر خوشحاله شوو، خو د سبا ورځي په شروع سره عسکرو دومره بد سلوك شروع کړ چې هغه د چا خبره شر ته یې دریا وهله مغروره اومتکبر به ګرځیدل چیغي ناري اودربي یي جوړکړي وو په بلاك کې معمولا اته څلویښت نفره اوسیدل دبلاك په اخر کې درو نفرو ورسره مشکل جوړ کړ او یوه نفر ورباندي اوبه و شیندلي، هغه غریب یې هم دسزا لپاره انفرادي بلاك ته بوتلي خبره خلاصه شوه خو په دا بل صبا چې دروژې لومړی ورځ وه دلومړی ځل دپاره دډوډی سزا راغله او سزا د ټول بلاك لپاره چې ۴۸ نفره وه

سزادبلاك سرجن ټاکلي وه اودکمپ مسوول بې له دي چي په حقيقت خبرشي منظوره کړي وه، داسي ليکل شوي وه چې دګرمي ډوډۍ پر ځاي عسکري وجبه د ۳۴ ورځو لپاره، او داوبو لپاره به څه نه ورکول کيږي خورماعسل اونورامتيازات به نه ورکول کيږي،موږ ته دحيرت خبره داوه چې دروژي په مناسبت دامريکايانو خبرتيا او بيا دلته دډوډۍ دسيسه او د معتصبو عسکرو بد سلوك اوورسره دډوډي سزا.

بيا مو دعسکرو مشران او ترجمانان راوغوښتل او ورته ومو ويل چې يو خو روژه ده د روژي په احترام بايد تاسو موږ ته سزاته واى راکړي، او بل يوه نفر اوبه شيندلي دي او هغه ته هم سزا ورکول شوه نو ولي نوروته سزا ورکوئ حال داچي هغه په هيڅ هم نه دي خبر، دريم دډوډۍ سزا لومړي ځل دي چې خلکو ته ورکول کيږي کله هم داسي ندي شوي نوکه په دي کاردوباره نظروشي، خو ددوي ځواب به تل منفي و، بالاخره يې ښکاره خبره وکړه چې موږ نظامي خلك يو او ديو سړي په ګناه ټوله نيسو او ټولو ته سزا ورکوو اودازموږ په قانون کي شته، ولاړه خبره خلاصه شوه، خو دا داسي لوڅ دروغ و چې موږ له ويري ورته دروغ نشول ويلی!!

يوه ورځ دقرآنکريم مبارك بي عزتي وشوه يوې ښځي عسکري چې بدشکله اوبداخلاقه وه ډيرتيره اوتيزاواز يي درلود،دي بدغوني په لومړي کمپ کې يو قفس تلاشي کاوه او قصدا يې دوه ځله قرانکريم په ځمکه راغورځولي و، بيا بنديانو غوښتل چې دي ښځي ته بايد سزا ورکول شي اود قرانکريم د پوره حفاظت تضمين وشي خو کله هم امريکايانو داسي نه کول اوخپل غروريي دبندي لپاره نه ماتاوه بنديانوپه لومړي کمپ کي اعتصاب شروع کړ، دويم او دريم کمپونو کې يې هم ملاتړ وشو ددغو کمپونو وروڼو ويل چې موږ به غسل او

تفریح ځاي ته نه وځو او نه به کالي بدلوو، او دا به داحتجاج به توګه وي چې دنوروا عتصاب کونکیو ورونو مرسته وشي، کله چې دوتلو او تفریح وخت راغی بندیانو له وتلو څخه انکار وکړ او دکالو د بدلیدلو څخه یې هم ډډه وکړه، تفریح ته وتل او دکالو بدلیدل دبندیانو حق و، خو کله چې به موږ غوښتل دوي به نه ایستلو خو په دغه ورځ امریکایانو دخپل ټرینننګ لپاره له زوره کارواخست عسکر به چې شمېریې دولس نفره و ، او زغري یې هم اغوستې وي او اوسپنیز پتري به یې په زنګنونو تړلي و هر قفس ته په مارش ورتلل تلویزیوني کامرو به یې دفعالیت اوقهرماني عکاسي کوله لومړی به یې پر بندي غریب په قفس کې ګاز شینده چې بیسده شي، بیا به قفس ته ورننوتل او په زور سره به یې دباندې را ایستل، بیا به یې سر، ږیره، بریتونه، ورځې ورخرییلي او بیا به یې په انفرادي بندقفسونوکې غورځول او دپریوتو لپاره به یې هیڅ شي هم نه ورکاوه، ټولو بندیانو به دالله اکبر ناري وهلې او ځینو به ښکنځل ورته کول او په ټول محبس کې داوسپنیزوکټونو دربې اودرګی و، او دبندیانو دماغونه پکښې خراب شول . او دځیني ورونو به یې نیمه ږیره ورخریلي اونیمه به یې ورپریښې وه، دځینو یو طرف ورخرییلي او بل به یې پرېښې و ، دځینو یو بریت خرییلي و او بل به یې پرې پرېښې و، دځینویې وریځې ورنیمایي کړي وي خو چې څنګه به یې زړه غوښتل هغه به یې کوله حتي نایې (ډم) کافربه هم خپل ټوکه ورباندې جوړوله او لوبه به یې ورباندې کوله.

۳- یو ځلي په انډیا انفرادي بلاک کې دتکبیرونو ناري شروع شوي او داوسپنیزوکټونو ټکول ډبول زیات شول اوازونه ډېر سخت و لږ وخت وروسته معلومه شوه چې عسکرو په انفرادي بلاک کې یو عرب ورور چې دسعودي اوسیدونکي مشعل نوم یې و وواهه او ووژل شو په ټول

کمپ کي غوغا شروع شوه ټولو بنديانو دعا وکړه چې الله ج دي دمشعل ورور شهادت قبول کړي اوالله دي وبخښي، ټولو ورونو له امريکايانو څخه وغوښتل چې دمشعل ورور په اړه معلومات راکړي که نه نو ټول بنديان چې څه کولي شي هغه به وکړي، حالت متشنج غوندي شو هري خوا ته به عسکر دلويولويو ډانګونو سره تاويدل او هم زغره لرونکي عسکر ګرځيدل اوتوپ لرونکي موټروبه ګزمه کوله، دانفرادي کوټو په هغه کوټه کې چې مشعل پکښې وهل شوي و، سره دخطر ګروپونه وځړيدل او غرفي ته سره تخته وځړيده چې نور يې هم دبنديانو انديښنه ديقين وخواته نږدي کړله له مازيګر سره نژدي داعلان کولو ږغ وشو او په عربي پښتو اردو ژبو اعلان وشو چې ستاسي د ورور مشعل حالت ښه نه دی دعاوي ورته وکړي او تر اوسه ژوندي دي ، دې اعلان څه ارام کړل چې تر اوسه پوري خو ژوندي دي.خو بيا به هم ورونو غوښته چې په احوال يې پوه شي، په سبا ورځ يو نفر هسپتال ته بوتلل شو او مشعل يې له نږدي وليده چې حالت يې ښه نه او دانديښني وړ وواو تر اوسه ژوندي وو اوپه عاجل واټ کې تر تداوي لاندي وو، وروسته له ډېره وخته يعني تر دوو درومياشتو معلومه شوه چې مشعل وروږفلج شويدي ژبه يې بنده او ټول دبدن اعضا يې بي حرکته شويدئ ولي ووهل شو، چا وواهه،څه جرم يې کړي و ؟ هيڅ معلومه نه شوه، له بندي سره دومره ظلم کله هم دبخښني وړ نه دی، او د نړۍ د ټولو قوانينو خلاف کار دي اونارواعمل دي.

مشعل دوه کاله شپږ مياشتي په هسپتال کې تيري کړي دلاس په بايسکل کې به يې يو ځاي بل ځاي ته انتقالاوه خو تر پايه جوړ نشو په خبرويې سړي نه پوهيده او د اعضاو حرکت يې لږ ښه شو خو کښيناستل

او ولاړیدل به یې د بل چا په واسطه کول دبدن دسخت' تشنج اوریږدخاوندشو او په پای کې د سعودي حکومت ته وسپارل شو.

## دویمه نادره

یو عجیبه او نادرکارچې دکمپ دمسئوول له خوا به کیده داوو چې لومړی ځل ډوډی یو اندازه ښه وه میوه یې هم ښه وه، خو دوخت په تیریدوسره به ورځ په ورځ خرابیدله، علت یې داو چې هره اونۍ به یو عسکر په ټولو بندیانو ګرځیده قلم اوکتابچه به ورسره و او د ډوډي پوښتنه به یې کوله، چې څه مو خوښ دي په ډوډي کې څه بدلون غواړئ، او په موجوده مینو کې مو څه شي خوښ او څه مو ناخوښه دي، چې کله به اکثره بندیانو ورته ویل دغه څه مو خوښ دي راته زیات یې کړئ، او دغه مو نا خوښه دي کم یې کړئ نو په داسي چل سره به بر عکس عمل کیده، مثلاً له خوښ شویو شیانو څخه به کمیدل او نا خوښ نه به زیاتیدل چې بالاخره ټوله مینو دخوراك نه وه سم شیان بیخي ورك شول او بیکاره شیان زیات شول، چې وروسته له ډیره وخته موږ پوه شووچې علت هم دادي بیا به مو څه نه ورته ویل اوکه به یې پوښتنه هم کوله په ځواب کې به مو ورته ویل چې څه راکوئ ستاسو خوښه ده پر مونږ فرق نلري، چې بیا له ډیر وخت وروسته مینو لږ څه برابره شوله.

۳- طبعي ده چې دبندیانو لپاره د وخت به تیریدو سره امتیازات ورکول کیږي، په شرائطو کې یې اسانتیا راځي او ژوند یې عادي کیږي، خو په دغه محبس کې برعکس کیدل دهري ورځي، میاشتي، کال په تیریدلو سره دژوند اسانتیا وي کمیدلې، او شرائط سختیدل، مثلاً دسزا انفرادي بلاکونه ډیرجوړ شول ، لومړی یواځي دملا پټه وه چې څوك به تحقیق،سره صلیب، یا ډاکتر ته بیول کیده بیاداپټه په

ځنځیرونوبدله شوه دا ځنځیران څه وخت وروسته دپښو لاسو او ملا ځنځیرونه شول ، او بیا په لاسونوکي دویم، دریم قلف زیات شو، سترګې به لومړی نه تړل کیدي بیا دپنځم کمپ لپاره سترګي، او غوږونه بندیدل ، مذهبي کتابونه لومړی ازاد و بیا په ټول کمپ کي مطلق بند شول کوم چي په کمپ کې موجود و هغه یې هم ټول کړل، علمي کتابونه لکه داقتصاد،او ریاضي، بیالوژي، سیاسي، تاریخي،جغرافیې او داسي نور کتابونه به کله ناکله راتلل دا ټوله دوخت په تیریدلو سره بند شول ، لومړی به په جزئې شیانو سزا نه وه بیا شروع شوه چې په لږ شي به درنه سزا ورکول کېدله. تحقیق به په رضا سره کېده بیا به سړي مجبور کېده چې خبري وکړي، ډېر ورونو ته ډېره سخته سزا ورکول شوه ، مثلاً په میاشتو میاشتو خلك خوب.ته نه پرېښودل کېدل لکه یو ورور ملا فاضل محمداخوند چې دخبرو د نه کولو په خاطر یو څلوېښت ورځي اوشپي سزا شو دشپې له خوا به یې دتحقیق په خونه کې تاړه او ایرکنډیشن به یې په وروستۍ یخې درجې سره ورته چالانا وه او عسکرو به په لرګیو تیمان ورته ټکول لکه دغنمو په موسم کې چې بزګر چوغکي له کښته شړي، او دورځي له خوا به یې ګرځاوه یواځي دی نه وو په لسګونو کسان به همداسي سزاکیدل چي ډیریي عرب ورونه وه، دتحقیق بلاکونه به تیار دکندهارښار دتوپخانې بازار و، بل ډول به په شپو شپو دبندیانو سراو پښي یو ځاي سره تړل کېدل او بیا به یې اېرکنډیشن یخي هواته کښېنول ، او ځیني عرب ورونه خو به یې په وړو کښتیو کې کښېنول او بیا به یې کښتۍ په ډېري تیزۍ سره په دریاب کې ځغلولې تر څو بدخوابه شي او وهم هم وربانډي تیر شي چي په هفتو هفتو به یې داسي سزاګاني ورکولي. ډاکټران به په لومړیو مرحلوکي هر وخت ازاد و او بندي ته یې دوا ورکوله، خو بیا

داسي نه و دوابه په هفتو نه ورکول کيده او يا به تر ډېره وخته ډاکټرانو ورته هيڅ توجه نه کوله، او نه به يې دمرض تشخيص کاوه يو ورور چې دکندهار دښورابك دولسوالۍ اوسيدونکي و ،چي نوم يي ولي محمد و، تر يوي مياشتي زيات يې له مريضۍ څخه فرياد کاوه، او دورځي په تيريدو سره يې مريضي سختيدله، دوه مياشتي وروسته له حرکت څخه ولويد دولاړيدلو نه و ،بدن يې ټول په درد شو او ټول بدن يې وپړسيد بيا هم ورته پوره توجه ونه شوه وروسته موږ ( نور بنديان) مجبور شولو چې مشکلات جوړ کړواودامريکايانوتوجه ورته راوګرځوو دروازي مو وټکولي اوپه ټولوبه موږ به لوړاواز دتکبير ناري وهلي او په زوره مو دقفسو تختونه ټکول تر څو عسکر وارخطا شول مشران يې راوغوښتل ترجمان راغلی او بيايې ولي محمد کلينك ته يوړی وروسته يې دويني تر معاينې دسرطان مريضي معلومه شوه. يواځي نه چې معلومه شوه، بلکې سرطان يې له ويني سره ايني ته تللی و چې له عاجلو عملياتو سره يې څه دمه وشوه، داځکه چې که يې په وخت سره دمريضي علاج شوي واي، او يايې دبنديانو دحقوقو مطابق هره مياشت ټيسټ ( معاينه )کيداي نو داسي لږې پيښي به واقع کيدلاي. نور دي ته ورته سخت شرائط هم ډېر وه ،همدا رنګه ورکول شوي امتيازات بيرته اخيستل کيدل.

## پنځمه پیښه

همیشه به موږ دهوډي دکمښت شکایت درلود او له لوږي به مو فریاد کاوه، تر صبر به خبره تیریدله ځکه ورځ، اوني میاشت، او کال نه و، کلونه وو او کله نا کله خو به مو دجنیوا کنوینشن ته هم اشاره کوله چې بندي ته باید کافي او دطبیعت خواړه ورکول شي. خودامریکانانو ځواب به مو داسي مونده چې تاسو په موږ دهوډي حق نه لري دغه لږ هوډۍ چې درکوو دا هم زموږ احسان اوستاسوامتیازدي حقوق خو د بشر لپاره دي، تاسي دبشر او انسانانو په حقوقو کې حق نه لري او تاسي دشکایت حق هم نه لرئ معني داچي شکایت هم ورباندي بنه نه لګیده.لکه بوش ملعون دی ته ورته مخ کی هم بشرته دشیطان القاب کاره ول.

بل دا چې دژوند ټول امتیازات به پلورل کیدل ، او هرڅه دبل څه په بدل کې ورکول کیدل، مثلاً که به یو سړي یا یو بندي کولاي شو چې محقق له ځان څخه راضي کړي نو دومره به نازول کیده چې ډیر څه به ورکول کیدل، او که به یې څه شي له محقق څخه طلب کړ نو به یې ورته وویل چې ته به څه کوي، حتي له یوه ځایه بل ځاي ته به دي که بدلیدل غوښتل نو قانون داو چې محقق ته ولاړشي که به محقق راضي نه و نو ممکنه نه وه چې بدل شي، او که به دي راضي کړ نو بدلیداي شوي دتشناب کاغذ، ساده.کاغذ، داوبو بوتل څلورم کمپ ته تلل، درجه لوړیدل ټول به دي په سودا کیدل او دسوالو په ښه ځواب، او یا په نوي خبره، یا په جاسوسي سره ډیرموقت پرمختګ کیده.

کله کله چې به ژورنالستان او ځیني حکومتي چارواکي تماشي ته راتلل اکثر به څلورم کمپ ته رهنمایي کیدل دا ځکه دڅلورم کمپ

شرائط تر نورو ښه وو او دوي به هم دخلکو دغولولو لپاره دنیا ته ښکاره کوله او هغه ژونالستان چې به دې کمپ ته راتلل دستوري غوندي وو بي طرفه نه ښکاریدل ځکه هغه عکاسي چې دوي يي فرصت درلودخلکوته نه ده ښودل شوي،اوبل داچي همیشه به دغه ټولګي مکرر راتلل، یوه ورځ دمعمول په ډول بیا هم لیدونکې راتلل یو عرب بندي ته یو عسکر خبر ورکړي و، چې دنن په سیلانیانوکي دامریکا دپخواني ولس مشر کنیډي ورور چې په ګانګرس کې ښه واك لري او برحاله سناتور دي راځي بندیانو غوښتل چې خپل دمظلومیت اواز خلکو ته ورسوي کله چې دزائرینو دغه ډله کمپ ته راغله مونږ يې ټول په خپلو کوټوکې قلف کړو، زیارت کوونکي به په کمپ کې هغه غرفي ته بوتلل شول چې نمایشي ورته جوړه او چمتو شوي وو، وروسته هسپتال ته ولاړل چې هغه هم ورته ښه برابر شوی و، دکمپ دیوه بلاك تر شاه دروازه هسپتال ته نږدې وه هغه کتونکي هغه دروازي ته نږدې شول، په بندیانو کې دوه ورونه وو چې په روانه انګریزي ژبه يې خبري کولې شوي دوی له فرصت څخه استفاده وکړه او په لوړ اواز يې زائرینو ته وویل چې که زمونږ خبري ته غوږ ونیسي مهرباني به مووي هغوی ورته وویل چې تاسو ته در لیدل شوي هر څه نمایشي دي دلته هغه څه پراته دي چې کله هم بندي ته نه ورکول کیږي، که تاسو واقعاً غواړئ چې په حقیقت پوه شئ نو پنځم، لومړی، دویم، دریم، ایکو ،کمپونوته ورشئ او هلته وګوئ چې دخلکو دژوند شرائط څومره سخت اوناوړه دي هلته خلك وږي، مریضان، او لوڅ پراته دي.دویم شکایت دا وچي بل موږ محکمه غواړو موږ بیګناه خلك یو ستاسو په اصطلاح تررورستان نه یو باید تاسو موږ محکمي ته حاضر کړئ ترڅو معلوم شي دلته څوك شته او څومره کسان امریکایانو په قفسونوکې ساتلي اوبندکړيدي

خوددغه شکایت په وجه دکمپ مسوول جنرال په غوسه اوقهرشو، شلونفرو شکایت کوونکیوته یي سزاورکړه او له ځلورم کمپ څخه یي وایستل اوټول امتیازات یي ځینې واخستل.

پنځه کسان له بوسنیا څخه راوستل شوي و او هلته په ګوانتاناموکي بندیان و ، تحقیق ډیر ترې کیده او درني سزاوي هم ورکول کیدي، شیخ صابر،ابو شیما، محمد، مصطفي، اوالحاج ډېر مظلوم او مسلمانان خلك و دوي تر پایه په دي نه پوهیدل چې ولي مونږ راوستل شوي او ګناه جرم مو څه دي، شیخ صابراو ابو شیماغریبان خو پنځم کمپ ته هم دسزا لپاره بیول شوي وه، همیشه به دوي په دي سره ځوریدله چې تاسو ولي بندیان یاست او موږ ته باید اقرار وکړي چې ولي دلته راغلي یاست اوعلت یي څه دي دا هغه سوال و چې باید بندیانو کړي واي شیخ صابر ماته وویل چې موږ ورته وویل موږ خو په علت نه پوهیږو خو تاسو که موږ ته علت و نه وایاست نو موږ به نور له تاسو سره دتحقیق په وخت کي خبري نه کوو، ډېر وخت یې خبري ونه کړې خو بیایې ځواب داسې موندلی وو،عجیبه دماشومانولوبه ده سبحان الله ځواب داچي امریکایان په هغو خلکوباندي پوهیږي چې امریکایانو، او یا د امریکا منافعو ته خطر وي که څه هم موږ په تاسو ظاهري ثبوت نلرو لکن ستاسو په دماغونو کې مفکوره داوه، چې په مستقبل کې امریکایانو ته خطر وررسوئ اوپه امریکایي ودانیوحملی ترتیب کړی، نو ځکه تاسو امریکایانو ته خطریاست موږ دلته راوستلي یاست اوموږحق لرو چې تاسوبیله محاکمی ترهره وقته وساتو مونږچې داسی فوق العاده حق امریکاته چاورکړی دی ، دیادوني وړ ده چې دغو ورونو نه افغانستان لیدلي و ، او نه یې له کوم تنظیم سره رسما تماس درلود یواځې دسربیانو دظلم په وخت کې یې چي دبوسنیامظلوم مسلمانان یې په

شهادت رسول جهاد اوداسلامي مسوولیت له کبله دخپلوورونو ننګه کړې وه او نتيجه يې داشوه . والله المستعان.




## له قرانکريم سره دامريکايي عسکرو معامله

دقرانکريم بي احترامي او بې عزتي خو له لومړۍ څخه امريکايانو ته عادي کاروو له موږنه يي هم همداسی توقع درلود ،خوموږته دژوندمهم فرض وو که څه هم امريکايان موږته په دې فکر وړي و چي ولي موږته قرانکريم دومره مهم دی، اکثره وخت به دقران پاك بي حرمتي دستونزو سبب ګرځيده او دا کار خو به ډېر ځله قصداً پيښېده، او کله به سهوا ، خو قصدي اعمال به ډېر کيدل لکه هغه دکندهار پېښه چې وړاندې مي ذکر کړه، خو په ګوانتانامو کې تر لس ځله هم ډېر دا کار وشو، پنځه ځله خو امريکايانو په خپله رسماً مِنلي ده، څو ځلي تردي وروسته پيښي وشوې څو ځلي په پنځم کمپ کې ورته پيښي وشوي چې اوسني مشکلات ترې جوړشو . دسوريي اوسيدونکي حمزه بطل ووهل شو مخ او سترګي يي پړسيدلي وي او قرانکريم هم دعسکر په لاس اخيستل شوي و، زموږ سره دا وعده سوی وه چې قرانکريم ته به عسکر لاس نه وروړاندي کوي او نه به يې تلاشي کوي خو په پنځم کمپ کې دحمزه معامله وروستۍ پيښه وه چې دعسکرو له خوا وشوه ،او بيايې مبارك قرآنونه سره لتولي و، سره ددي چې له موږ سره وعده شوي وه چې دتلاشي پر وخت بايد بنديان خپل قرانونه له ځانه سره يوسي چې ددغو وعدو پر خلاف سلوك دبنديانو د سختي غوسې سبب وګرځيد او عکس العمل يې مشکلات اواعتصاب و ترڅوخپله کرکه ورته څرګنده کړي.

بنديان په دنيا کې عاجزه او نا وسه طبقه ده چې هيڅ يې په واك کې نه وي او نه څه کولي شي، خوپه تيره دامريکايانو يرغمل شوي بنديان بيا په عاجزو کې تر ټولو عاجز انسانان دي چې دبشر له ټولو حقوقو محروم بې برخې او په نا انساني انزوا کې ساتل شوي دي، خو له ډېر عجز سر بېره ورته قرآن مبارك دژوند تر ټولو اړين وو نو ځکه به يې دقرآن لپاره ځان واژه، ګران بدن به يي زخمي کاوه، او وږی، تږی به يې ژوند کاوه.

قران الکريم دبنديانو لپاره دعذاب او سزاترټو لويه وسيله وه چې امريکايي عسکرو به هروخت دبنديانوپه ضد کاروله او هميش به بنديانو وربانديې غيرت کاوه، او امريکايانو به ورته دزړه دخوښې سزا ورکوله.کله چې به امريکايي ځناوروغوښتل بنديانوته سزاورکړی نوقران الکريم ته به هڅه کول اوبيابه يي پړه پربنديانواچول، موږ په دي پوهېدلو چې قرآن زموږ دعذاب او سزا سبب دی ، امريکايان تري ناوړه استفاده کوي او دبنديانو په ضد يې استعمالوي خوڅه موکړي واي چاره مونه درلوده.

مونږ به هميشه غوښتل چې په کمپ کې بايد قرانکريم نه وي مونږ دقران مبارك پر تسليمدلو ټينګار کاوه،چې دتسليمولوپه وجه يي هم دستونزو سره مخامخ شولو اوامريکايانوولي داکار کاوه؟؟ چې کله به موږ قرآن له ځان سره نه پري ښود هم به سزا راکول کيده او که به مو دځان سره ساته نو حفاظت به مو يې هم نشواي کولاي په دواړو حالته کې مشکلات پيدا کيدل چې په سلو کې اتيا فيصده عذاب موږ ته دقرانکريم په سبب راکول کيده، او پاتې شل فيصده نور مشکلات وه، دقران په عوض به موږ نور مذهبي کتابونه غوښتل خو داکار صورت ونه نيوه او يواځي موږ دقرآ ن دساتلو اجازه درلودله اوبس.

## دعبدالله خان دخولې انځور

داروزګان ولایت دچارچینو ولسوالي اوسیدونکی عبدالله ورور چې اصلي نوم یې خیرالله وو او دخیرالله خیر خوا په نامه نیول شوی وو او بیا له ډېر وخته وروسته له ګوانتانامو څخه خوشي او ازاد شو. دخپلو سترګو لیدلي حال راته داسي ووایه چي کله په کندهار کې دوی بندیان و، هره ورځ به دتلاشي په نامه امریکايې عسکرو ددوی دتوهین هڅه کوله، دده په وینایو ځلي عسکرو تلاشي کوله زه یې له تفتیش وروسته پړمخي پر خاوره وغورځولم، او زما مبارک قرانکریم یې له تلاشۍ وروسته پاڼه پاڼه په مځکه وغورځاوه، چې کله یې قرانکریم وغورځاوه ددوي دتلاشي سپي چې لدوی سره وو پرقران الکریم حمله کړه.او په خوله یې وشنډه چې کله مونږ دغه حال ولید دالله اکبر ناري مو پیل کړي سپي بیرته قرانکریم له خولي وغورځاوه او عسکر بیرته قرانکریم پورته کړي او ما ته یې راوغورځاوه چې دغورځولو په وخت کي قرآن کریم په هغه ستل کې ولوید چې بندیانو ته یې دقضای حاجت په خاطر ایښي و. عبدالله ورور وایي بې له ژړا بله چاره نه وه زه هم پړمخي په خاورو کې پروت وم، او قرانکریم خو په هغه حالت کې و، مابه یواځي داویل اي مبارک قرآنه ستا خو هیڅ ګناه نشته یواځي دا چې دانسانانوپه خاصه توګه دمسلمانانو دهدایت کتاب یې او زما هم بې له دې چې په تا عمل کوم بله ګناه نشته، نو ته په اخرت کې پر ما شاهد اوسه، او زه به پر تا شاهد اوسم چې دنړۍ استکباري قوت دنوري کفري نړۍ او په مسلمانانو کې دمنافقانو په مرسته او کومک زما او ستا سره دغه چلند کاوه اوداسي مظلومیت په حالت کي وو.

دسعودي اوسيدونکي شاکر يوځلي تحقيق ته بيول شوی و او دده په وينا ، قرانکريم دمحقق تر پښو لاندي په دې غرض اېښودل شوی و، که شاکر رښتيا خبره ونکړي اوهغه څه ونه مني چي محقق يي غواړي نو محقق به پر قرانکريم باندي پښې کيږدي والله اعلم،

ددې خبري په رسواکېدلو سره ډېرو ورونو غيرت وکړ، او ډېر په عذاب شول په مياشتو مياشتو يې ډوډۍ ونه خوړله او له رنګارنګ ستونزو سره مخ شول، دتلاشۍ په وخت کې ډېر ځله عسکر دقرانکريم سره موښتل اويا به يې لاندي راغورځاوه او بيا به يې دخطا او سهوي رنګ ورکاوه او عامل به يې له هيڅ ډول ستونزې اوسزا سره نه مخ کيده، او نه به سزا ورکول کيدله، يو ځلي خو دا هم پېښه شوه چې کله به بندي ته سزا ورکول کيدله نو قران الکريم به هم ځيني اخيستل کيده ، او چې کله به بيا بندي په خپل اختيار نه غوښت نو بياد سزا موده ورته نوره هم اوږديدله، دقرآنکريم داحترام تشي وعدي تر پايه هم په ځاي نشوې خو دبنديانو دسخت مقاومت له خاطره دوي مجبوراً څه نا څه اقدامات وکړل خوامريکايانودشاکر عکسونه دکريکاتور په شکل جوړکړه دشفی لخوايي دبنديانوقفسونه ته ورغورزولی و په هغه کی دشاکرترعکس لاندی ليکلی و ( المنافق ) ترڅودنورو بنديانوګمان پر بد کړی .دی ته ورته ډيره بل عرب عبدالهادی نومی عکسونه جوړ سوی و چی دترازو دوی پلی اوميزان و، په يوه تله کی دعبدالهادی عکس اوپه بله تله کی دروا غ چی ددرواغو تله ډيره درنه اوهغه بله سپکه وه، عبدالهادی په ذی متهم و چی ګواکی دی د زرقاوی ورورردی اودهغه په هکله معلومات لری خوعبدالهادی دانه منله، کله چی امريکايانوغوښتل چی يونفر منفور کړی نوداسی کړنی به يي کولی خوهغه به بالعکس په خلکوکښی دمحبوب سو ځکه چی دامريکا يانوپه

خبره هیڅاهم اعتماداوبروسه نه کوله اودامریکایانوښه دښمن خوندورکاوه اومحبت به یي ورسره کاوه .

قرانکریم به له بندي سره په قفس کې و، او یو نازك ماسك ورته دپورته ساتلو په خاطر ورکول کیده ، چې حفاظت یې وشي ډېر عسکر چې مشکلات به یې نه غوښتل قرانکریم ته نه نږ دي کیدل او احترام به یې کاوه خو کله چې به بندي تحقیق، ډاکټر، یا دګرځیدلو لپاره دباندي ته دځنګ ګاونډیو ورونو به یې دقرانکریم څارنه کوله ترڅو ورسره بي احترامي ونشي.

## دڅوبنديانوله

## څه اوريدلي انځورونه

دوه بنديان چې زما سره نژدي کاونډيان و يو دتاجکستان، او بل ديمن اوسيدونکي و، تاجکستاني ورور محمديوسف، او يمني ورور مختار نوميدل دادوه هغه کسان وه چې ده قلعه جنګي په ظالمانه دسيسه کې تر تسليميدلو وروسته ژوندي پاتي شوي و، دوي به دخپلي تسليمي، او بيا دبد سلوك، او بيا دبمباريو، دناخوالو قيصي په بار بار راته کولې، دوي ويل چې مونږ دوستم خداي ناترسه ظالم ته په دي نامه تسليم شولو چې بي عزتي به راسره نه کوي، او دژوند حفاظت به مو کوي، خو بيا دتسليمۍ وروسته هر څه بدل شول، زخمي ورونه تر تسليمي وروسته وويشتل سوه اوبياشهيدان شول او يا ژوندي تر خاورو لاندي شول او په ژوندو ورونو هغه توهينوونکي څه وشول چې کله يې هم له مسلمان څخه څه چې ان له انسان څخه توقع نه کېدله، په کانو ويشتل، په لرګيو او کونداغونو وهل، په سپېږمو ، سترګو، غوږو لرګي منډل، او نور داسي کړه تر کالو کشولو پوري ترڅو بربنډ شي، د ټولو لاسونه تړ شاه وتړل شول او پښي هم دځينو وتړلې شوې او بيا په کانټېنرونو کې واچول شول دومره زيات به په کانټېنر کې اچول کيدل چې له ډېره زوره او نفس تنګۍ نه بيا هم ډېرو خلکو ژوند له لاسه ورکړ، جنګي کلا ته راوستل شول او په ډېره بي رحمۍ يو پر بل وغورځول شول، تږي او وږي وو ډوډۍ، اوبه به نه ورکول کيدې ، او ټولو چې په جيبو کې څه درلودل ځيني لوټ شول کله چې څه اوبه يا ډوډۍ را کول شوه نو دحيواناتو په شکل وه، دډوډۍ دخوړلو لپاره تر شاه تړلي لاسونه راخلاص نه کړل شول، او يو دبل په خولو به مو وچه ډوډۍ سره پرې

کوله یابه مو په خوله کشوله تردي حده چې دوستمې ملېشو به دپنډوس غوندي لوبي راباندي کولي. او په لغتو به يې يو له بل سره جنګولو. دوي به ډيرډيرويل چې موږ په دي سخت پښېمانه وو چې ولي تسليم شولو. ځکه تر داسي وحشي او غير انساني عمل خو مرګ ځو چنده بهتر او عزتمن و.محمد يوسف تاجکي خو دا هم ډېر ويله چې کله زما د جيب پيسي اوسامان لوټ شو يوه ازبك مليشه مي په خوله کې وکتل ما پخوا دژېړو پوښ داره غاښونه په خوله کي ايښي وه دوي فکر وکړي چې دا به سره زر وي په ډېر قوت سره يې غاښونه را ځخه کشول.ځرنګه چې هغه ډېر ټينګ و نو بيا يې دپلاس په واسطه کار شروع کړ خو بالاخره ما ورته وويل چې دا ژېړ دي طلا نه ده بي قيمته شي دي همداسی يي دنوړو عسکرو په تايېد سره زه پريښودم.ديادوني وړده چې محمديوسف تاجکي دده په قول افغانستان ته دويزي اوپاسپورټ له لاري راغلي وواوپه کندوزکي يي مزدوري کوله.

خو مختار چې دعمر له لحاظه کم و هميشه به يې د جنګي کلا دياد سره ترغتو سترګو اوښکي راتلي او افسوس به يې کاوه، ده راته ويل چې کله به موږ ډېر سخت په عذاب شولو نو مو په خپل منځ کې وويل چې تردي ژوند خو مرګ ښه دي کوښښ به وکړو چې لاسونه سره خوشې کړو. او بيا به په موجوده ازبکو حمله وکړو تر ځو يا مړه او يا لدې ځايه ووزو خو دوتلو امکانات بيخي کم و ، همداسي وشول دډېرو لاسونه خلاص شول او دالله اکبر په چيغه دلوي خداي په نصرت سره مو په عسکرو حمله وکړه سلاح مولاس ته راغله. جنګ شروع شو او امريکايانو لږوخت وروسته بمبارد پيل کړ تردي چې اکثره وروڼه شهيدان شول، تر شپږو ورځو جنګ دوام وکړي وروسته دوستميانو کلا ته اوځينوکوټوته دفترولوپه زريعه اور ورکړی بيايي اوبه خوشي کړي

ترڅوله داوراو اوبوڅخه دسلاح کاروا خلي کلا اوخوني ټولي له اوبو ډکي شوي ، اوبه زياتي شوي اومهمات اومرمۍ مو هم خلاصي شوې بيا بيرته ونيول شولو، دا هغه غميزه وه چې په سلګو نو انسانانو په استفزازي چلندسره خپل مرګ او دبل مرګ ته مجبور کړل شول اوزړه ورته ښه کړې .

يو بل بندي محمد يوسف افغان راته دخپل نيولو قيصه وکړه ويل به يي چې زه طالبانو په جلب کې بيولي وم، او کله چې تسليم کړل شولو نو تر ډېره حده به مونږ فکر کاوه چې ژوندي به پاتې شو او خپلو کوروته به سالم ورسيږو، خو داهيلي مو هغه وخت په ناهيلۍ بدلي شوې چې ويشتل، او ضربه کول پيل شول، سلاح تسليم شوه لاسونه تر شاه وتړل شول او په بنديانو کې چاړ شروع شو، خلك ويشتل کيدل، په برچو وهل کيدل، او زخميان خو په هغه کندوکي ژوندي ښخ کړل شول چې دبارانونو داوبو په زور جوړي شوي وي، ښه کالي، صدرۍ ( واسکټ )، لنګوټي، ساعتونه، دجيبونوټول سامان، اودپښو څپلۍ خو به هر يوه لوټولي نارې (لاړې) توکل، په سوکانو، لغتو، څپېړو وهل، ښکنځل خولاعادي کار وو، په سلګونو کسان ضربه کړل شول، او دا کار دلاري په اوږدو کې دري ځلي وشو، وروسته په يوه کانتينر کې واچول شولو چې په هغه کانتينر کې چې زه وم قريب تر ۳۰۰ پوري نفر وو دکانتينر دروازې په زورسره بندي شوي، دحيوانانو نه ،بلکې د پروړو په رنګ يې په لغتو پکښې تخته کولو، دمزارشريف ښار و دسهار تقريباً اته نهه بجي وي دوي شپې او ورځې په همدغه کانتينر کې تيري شوي، ددروازې له بنديدو لږ وروسته دخلکو نفس تنګي پيل شوه او زورونه،ټيلې،او ټمبې شروع شوي چيغې،غلبلې او نارې شروع شوي خو چا نه دروازه خلاصه کړه او نه چا راته اوبه او کومك راکړ،ان تردې حده

په خلکو کې تکلیف زیات شو چې خلکو حواس له لاسه ورکړل ، او یو په بل به یې خولي لګولي، او یو د بل غوږونه به یې په غاښونو سره پرې کولي، او په ځانونوبه نه سره پوهیدل.دی وایي چې ډېر ځله مواوازونه اوریدل چې ځیني بندیانو ورونه به ویل چې هغه دي رسول اکرم (ص) راغی، او چا به دجنت ناري وهلي او بیا به یې روح له تنه جلا کیده، په همدې دوي دري ورځو کې دغه بدحالت و او دري ورځي وروسته دکانتینر دروازه خلاصه شوه زه لاهم دکانتینر په پاي کې ژوندي پاتې وم، او زما په شمول یواځې دولس تنه ژوندي پاتي وو او باقي ټوله په دغه وحشي عمل سره له دنیا څخه ولاړل اوشهیدان شول، زه دمړو په جسدو باندي راتیرکړل شوم او بهر راووتم، دده په وینا لومړی څوک چې زما سترګي پري ولګیدي هغه څوك وو چې مایي کله هم فکرنه کاوه،اوزه یي هم دیادولوجرات نلرم. او بیرته ژر وتړل شوم او سترګي مي بندي شوي، او دشبرغان کرغیړن محبس ته بوتلل شوم،دیادوني وړده چې له مزارشریف څخه تر شبرغانه پوري یواځې ددوو ساعتو دموټر لاره (تقریباً ۱۲۰ کیلو متره مسافه) ده، ده وویل کله چې په شبرغان کې له نورو بندیانو سره یو ځاي شوم نو نورو بندیانو هم دخپلو ترخو قیصو څخه خبر کړم، او په ټولو باندي همداسي ناوړه اوبي رحمه حالت تیر شوي وو چې په نتیجه کې یې تقریبا د اته زره تسلیم شوبو کسانوله جملي څخه د دریو زرو په اټکل تر ډېرو ستونزواوستونزو وروسته ژوندي پاتي شوي و ، او پاتې پنځه زره شاه خوا تسلیم شوي اسیران تر خاورو لاندي، او یا د بدنامي له کبله وسوځول شول . دا لیدلي حالات دي خو سیاسي اړخونه یې ډېر ژور اوعمیق دي چې ولي دا کار وشو دچاپه مشوره وشو، او تر شایې دچا لاس و خوزمادلیکلو لپاره دومره څه کافي دي. دلته باید ووایم چې هغه مهال ددوی تر تسلیمی

وروسته څو ځلي ما ((لیکوال)) له اسلام اباد څخه دټیلفون پر کرښه له دوستم بي رحمه سره خبري وکړي او هر ځل به یې دبندیانو دسالمیت اطمینان راکاوه، دملل متحد دبشري حقوقو، دسري میاشتي دمقاماتو سره مي په اسلام اباد کې عاجل ملاقاتونه وکړل، او په عاجل اقدام کولو مي ځیني غوښتنه وکړه تر څو دخلکو ژوند بچ شي، او د بشري حقوقو دخوندي ساتلو څارنه وکړي،زه په دي سره پوهیدم چي دوستم دوینوزبیښلو ژوی(( زوره)) ده خداي خبر چي بندیان به سالم پریږدي همداوجه وه چي لاس اوپښي به مي هري خواته غورځول همدارنګه زماترنیولومخکي مي له موجوده ولس مشرحامدکرزي سره هم داسیرانوپه ساتلوکي دټیلیفون په کرښه دده توجه وغوښتله،اوله پاکستاني دیکتاتور پرویزمشرف څخه مي هم رسمادهمکاري غوښتنه وکړه خو ونه شوه څه یي نه کول یایي نسوای کولای والله اعلم.

یوه بل بندي چې نوم یې عبدالغني زمري وو دخوشاب دکلي اوسیدونکي و،ده دخپلو نیولو په هکله راته وویل کله چې زه له کور څخه بوتلل شوم او د کندهار والي ګل اغا ته په دي نامه معرفي کړل شوم چې ګواکې زه هغه کس یم چې دکندهارپر هوایې میدان مي توغندي توغولي دي، هلته پوښتني راڅخه ډیرې وشوي خو زه له هغه څه څخه ناخبره وم چې دوی را باندي تورلګاوهٔ بیرته دوالي دورورعبدالرازق په لاس هغه چاته تسلیم کړل شوم چې پخواني مشهور کمونست قمندان الله نور نومی وو، چې دکمونست رژیم په وخت یې دلښکرګا په ولایت کې نظامي دنده درلودله په زرګونو مجاهدین یې شهیدان کړي وو او دکمونیست رژیم له نسکوریدو وروسته پاکستان ته تښتیدلی و خو دامریکایانو له یرغل وروسته بیا څرګند او فعال شو، په همدي وخت کې دکندهار دهوایې ډګر دامنیت مسؤول و او هغه ته

وروسپارل شوم، او له سپارلو وروسته هغې کوټې ته بوتلل شوم چې دیوالونه یې تور په سرووینو رنګ و اوسپنيز کیبلونه راغلل او وهل شروع شول خو بیا هم ما هغه څه په ځان نه منل چې دوي به یې تور راباندي لګاوه، بیا دسزا او شکنجو تکتیك بدل شو دشپې لخوا به ځړول کیدلم او څو قسمه ځړیدل مي ولیدل دصلیب غوندي پیپونه تیار شوي و په عرض به له یوه لاسه تر بل لاسه تر لستوڼو ایستل کیدل او بیا به یې په نري لیلوني رسۍ سره وتړل، بیا به یې ځړولم ترڅو به زه بیهوښه شوم او بیا به یې سرچپه په پښو ځړولم، او دورځي خو دکیبلونو ګوذارونه و ترڅو ورځو همداسي حالت وچې بیاالله نورقمندان په خپله راغی اوراته ویي ویل که هرڅومره ځان ټینګ کړي بیاهم به اقرارکوي اوکه اقرارونه کړي نوپه دغه کیبل به په ملادوه ځایه کیږي او قسم دي که ژوندی خلاص شې په هم دي مجبوري مي هغه څه په ځان ومنل چې دوی راته ویل، تر اقرار وروسته بیا امریکایانو ته ډالۍ شوم.

## دیوه بل ورورقیصه

یوه بندي ورورچې نوم يې غسان او دسعودي عربستان اوسیدونکي و دخپل اسارت قیصه يې داسي راته وکړه، ده ویل موږ لاهور ته نژدي په یوه سراي کې ددي لپاره اوسېدلو چې بهر لاره پیدا کړو او له پاکستان څخه ووزو، خو دوتلو لار په ډېرو روپیوراته پیدا کیدله او دومره کافي پیسي موږ نشوي پیدا کولی او دتیتې بیې لپاره مو کوښښ کاوه اودځیني پاکستانيو چاروا کیوسره موخبره روانه کړي وه، یوه شپه ناڅاپه دربی شو اوپه کورکي اوسېدونکي پاکستاني ورور په ډېره وارخطايې سره راته ناره کړه چې امریکایان راغلل، او دکور شاه وخوا يې محاصره کړي ده، موږ له خوبه راویښ شولو خو د پاکستاني عسکرو پرته مو نور څوك په نظر رانغلل شاه وخوا مو لاره وڅارله دوتلو لار مو ونه موندله، پاکستاني عسکر ځکه داخل ته ژر رانغلل چې ګومان يې کاوه زموږ سره به اسلحه موجوده وي خو دوي ته تاوان ونه رسیږي، خو زموږسره هیڅ هم نه و یواځې کوچني دترکارۍ چړې موددفاع لپاره اماده کړې وې،پاکستانی عسکر کرارکرار رانژدې کېدل او بیا به يې ترجمان راته ولیږه چې تاسو په خپله ځانونه موږته تسلیم کړۍ موږ به درسره مرسته اوکومك وکړو.

موږ ورته وویل چې له تاسو سره امریکایان دي او هغوي ته موږ ځانونه نه تسلیمو خو دوي وویل چې امریکایان نشته موږ صرف معلوموو چې تاسي څوك یاست اوڅه کوئ موږ ورته وویل چې موږ عرب مسلمانان مجاهدین یو ستاسو ورونه یو دالله لپاره زموږ سره غرض مه لرئ، خو دوي په څو څو ځله په الله (ج) سره قسم کاوه چې دوي تاسي ته تاوان نه رسوو دوي به داډیرډیرویل چې موږ هم مسلمانان یواومسلمان

به څنګه بل مسلمان وروركفارو ته تسليموي، تاسي زمونږ ورونه ياست، كله به مو هم امريكايانو ته تسليم نه كړو، خپل دولت ته مو وراستوو، او بل دا چې ستاسو سره به موږ دورور ګلوي سلوك كوو او ستاسو احترام به كوو كله چې موږ ددوي په قسمونو او وعدو اعتبار ونكړ ، نو بيايې څو نورخلك راواستول چې صورت او سيرت يې په شريعت برابر معلوميدل، ښې غټې ږيري يې درلودي اوعلمي معلومات يې درلودل، موږ ته يې ځانونه دلشكر طيبه مجاهدين معرفي كړل ځانونه يې راته نژدي كړل، او خبري به يې په ايت او حديث كولي په عربي ژبه يې ښه تسلط درلود ،او هغوي په الله ج دقسمونو لړۍ ګرمه وساتله چې مونږ به امريكايانو ته نه تسليموي او دوي مسلمانان دي خپلو هيوادونو ته به يې سالم رسوي، او په اخر كې يې دتعهد لپاره يو خط هم وليكه چې دا وعده پكښي شوي وه چې موږ به نه تسليموي دخط په پاي كې يې په دغه مبارك ايت چې دموسى او شعيب عليهما الصلات والسلام په وعده ذكر شوي خاتمه وركړه - والله على ما نقول وكيل.

مونږ دمجبوريت له كبله ځانونه تسليم كړل، مګر هغه څه مو ونه ليدل چې وعده يې كړي وه، پاكستاني عسكرو لومړۍ لوټ كړو او په ډېره بي رحمۍ سره يې وتړلو او بيايې امريكايې عسكر راوستل چې زموږ تماشا وكړي، كوم چې دوي ورته مخلصانه خدمت كاوه، او دهغوی شاه ته ولاړ و بدرديې راته ويل وهل، او ټكول شروع شول او بيا په هغه تورو كوټوكي وغورځول شولو چې ډېري تياره او كوچنۍ وي او سمدلاسه راته شكنجه راكول شروع شول .دشكنجي په وخت كې به ځيني عسكرو موږ ته داسي هم ويل چې تاسو زمونږ ورونه ياست خو مونږ مجبور يو چې له تاسو سره داسي معامله وكړو يعني شكنجه او بد

سلوك هم دمجبوریت له کبله کیده، خو عجیبه داوه چې ویل یې که تاسو موږ ته ډېرې پیسي راکړئ نو تاسو به امریکایانو ته تسلیم نکړو خو زموږ سره دومره پیسي نه وي چې دوي پرې راضي کړو،نوبالاخره موږ امریکایانو ته په ډېرې بې عزتي سره وسپارل شولو او دسپارلو په وخت کې به پاکستانیانو داسي ویل چې خدا حافظ تسلیمي او خدا حافظي ای مجبورستانه خدای خبر چې غوږبه خلاص سی؟!! .

دوه ورونه چې یو دیني عالم اولیکوال عبدالرحیم مسلم دوست او بل دانګریزي ژبي تکړه استادبدرالزمان بدر ودجلالآباد داوسیدونکي و ، په پاکستان کې یې دمهاجروپه توګه ژوند کاوه او خپل شخصي کور یې درلود چې بیا دپاکستانیو چارواکو لخوا نیول شوي اوپه امریکایانو پلورل شوي وو، دا هغه کسان وچې کله یې هم له طالبانو سره رابطه نه درلوده او نه یې په طالبانوکي کومه دنده ترسره کړي وه، دخپل بند او نیولو په اړه یې راته وویل چې موږ دصحافت کار کاوه او دیوي مجلي او ځیني اخباري ایجنسیو سره مو په مزدوري باندي کار کاوه، دوي تقریباً دري میاشتي له ای ایس اي سره په زندان کې تیرې کړي وی ویل یې یواځې موږ دافغاني غیرت له مخې دافغانستان پر حالاتو لیکني کولي اوافغان وژنه موغندله چې اکثره دپاکستان له خاوري بمبارېده اوخپل ډك زړه به موپه ازاده لیکنه تشاوه او کله مو هم داسي عمل ندي کړي چې دپاکستان پر ضد وي،اویاوسلوال عمل وي دشپي له خوا زموږ په کور چاپه ووهل شوه، او پاکستاني عسکر مو په ښځو او ماشومانو کي د شرمښانو غوندي ولویدل، دکور سامان یې ټول ولټاوه او زموږ دوو ورونو لاسونه پښې یې ټینګ راوتړل او په خوله او سترګو یې پلاسترونه راته ولګول ښځو ماشومانو مو چیغي، وهلي،موږ اود فامیل نور وګړي نه پوهیدلو چې پاکستانیان دڅه لپاره دا کار کوي،خو کله چې د

اي ایس اي توري بندي خانې ته وروستل شولو پوه شولو چې دا ځاي به دځه غرض لپاره وې، توهینوونکې خبري سپك وضعیت به راسره کیده، او کله کله خوبه دافغانستان په هکله دپیغور خبري راته کیدلې، تحقیق شروع شو اکثره پوښتني هغه وي چې له مونږ سره یې هرګز علم نه و او نه مو ورسره ارتباط درلود. امریکایې څارنوالان هم تحقیق ته راتلل خودپاکستانیانو خبري تر ډېره دپیسو او معاملي وي، څرنګه چې له مونږ سره ددوي درضایت پیسي نه وي بیا پر امریکایانو وپلورل شولو دیادوني وړ ده چې دغه ورونه امریکایانو هم په خپل نظامي محکمه کې بري و بلل اوازاد یې کړل اوهیڅ یې پرې پیدانکړل ،همدي ته ورته حاجي ولي محمد صراف ، عبدالرحمن نوراني او ډېري افغانان و چې د پیسو په نه ورکولو سره پاکستانیانو پر امریکایانو خرڅ کړی و په دي نامه چې ګواکي دوي له القاعدي یاطالبانوسره تماس درلود. خو هغوي بې له کوم ثبوته خوشي کړاي شول. حاجي ولي محمد یو صراف وو چې دپیسو دبدلولو او دسروزرو سوداګري یې کوله دا دده شخصي سوداګري وو، تجاران له هرچا سره معامله کوي دهر حکومت، او هري موسسي، او هر فرد سره تجار خپله ګټه لټوي دچا دسیاست او حکومت سره اکثره اړه نلري. حاجي ولي محمدورور خو یو شخصي موټر او څه نقدي پیسي هم له لاسه ورکړې وي او تر اوسه مظلوم دګوانتانامو په زندان کې بې برخلیکه پروت دی اوبچیان یې په انتظارکی دی.

اکثرو ورونو به همدي ته ورته خپلي کیسي راته کولې خو ددې کتاب دحجم لوېدلو په خاطر نه غواړم چې هر څه ولیکم دومره نمونی به کفایت وکړی انشاء الله دیادوني وړده چې دعربو ورونو سره په پاکستان کې بد او بې رحم سلوك تر افغانانو ډېر شوی وو، البته دګوانتانامو اکثره بندیان دپاکستان دهمکاری اوانسان پلورنې دسوداګري نتیجه

وه او ددوی دانسان پلورني سوداګري دپانګوني غټه برخه ده چې دهمدغه سوداګري له برکته مسلمانان دګوانتاناموپه جزيره کې دزحمت شپې اوورځې سبا کوي اودزړه له کومې پاکستان ته دخرابې ښيراوي کوي يقين لرم چې ددغومظلومانوله ښيراڅخه الله بې نيازه ذات غافل نه دي اوپه خپل وخت به نتيجه ورکړي الله دي ټول مسلمانان په خير له ظلم او اسارت څخه وباسي. دبنديانو په منځ کښې پاکستان په مجبورستان شهرت درلود له دې کبله چې هرڅه به يې کول بيابه يې ويل (پاکستان مجبور هي).

دبشردحقوقوناري خواوس هم دنړې ګلوبل کوره لړزوي اودنړۍ په هرګوټ کې په لوړاوازدخلکودغوږو پردې شلوي اواحترام يې دهرچافريضه ګرځولي،دافغان مرتد عبدالرحمن ، او علي محقق نسب په لړبندخودنړۍ فرعوني ولس مشران هم ناقراره شوه کولتوراومذهب هم ترپښنولاندې شو په دې هکله غواړم لږتشريح ورکړم،غواړم لږ لوستونکي متوجه کړم چې دبشر دحقوقو دخوندې ساتلو په غرض ددويم جهاني جنګ وروسته، چې پکښې نهايي ظلم وشو اوډېر بيګناه انسانان پکښې مړه شول په مليونونه انسانان په شکنجو، وهلو، او حتي په نيازي کمپ کې وسوځول شول دامريکايانوپه اټوم دجاپان په هيروشيما اوناګاساکي په ولسي وګړووغورځول شوچې ډېر شمېرانسانان په کښې ويلي شول،ښځې، نارينه، سپين ږيري، کوچنيان په مذهبي او نورو دسيسو وځورول شول،چې بيا ملل متحد ايجاد شو په دې غرض چې مساوي عدل په دنيا کې را شي او په چا تيري اوظلم ونشي او نړيوال قانون وضعه شو، چې دنړۍ دټولو وګړودحقوقو تحفظ وکړي او هر ډول ستونزې ته دحل ټکي پيدا کړي، او دهر جرم لپاره قانوني مجازات، دبشر درناوي او مذهبي دودونوته احترام وشي، او

بدني اخلاقي فيزيکي توهينوونکي اعمال صورت و نه نيسي با صلاحيته محاکم په ملي، او بين المللي قوانينو سره حکم وکړي، خلکو ته ددفاع حق، او دامنيت ډاډ ورکړي، دټول بشر لپاره حقوق مساوي وي جرم جرم وبلل شي که يې عامل هر څوك وي، او دهيڅ بشر سره ظلم ونشي که هر څوك وي، مذهبي منطقوي نژادي تبعيض ته موقع ورنه کول شي چې په نړۍکي دګډواوسېدونکيوانسانانو فاصله زياته کړي، خو تر ټولو لوي هدف داوو چې استکباري امپراتوري په حقيقي او معنوي ډول ختمي شي، او دقوي هېوادونو دظلم لاسونه کوچني،او کمزورو هيوادو ته پرينښودل شي چې ظلم پرې وکړې، خو متاسفانه چې دملل متحد اداره داستکباري هيوادونو اله وګرځيدله او دغير قانوني ظلمونو کړنه په همدغه چوکات کې قانوني بڼه اخلي والله المستعان.

دجنيوا تړونونه چې په ميلادي کال ۱۹۴۹ کې دنړي دهيوادونو لخوا تصويب شوه و انسان ته چې هر څوك وي په لوي او درانه احترام قائله ده ، دا تړونونه چې په ۱۹۸۵ کال کې بيا تاييدهم شول دجنګي حالاتو او جنګي اصولو مفصلي خبري کوي، دجنګ په وخت کې دملکي وګړو مدني حقوقو او فرهنګي اقتصادي شتمنيو تضمين او دبنديانو دحقوقو حفاظت کوي، هر انسان چې ژوند ، او دهغه دفاع، او دژوند ټوله اړتياوي يې طبعي حق دي حق ورکوي،، قانون او دژوند داړينو پيښنو اصول جوړ وي ډېر خله ورته بايد وويل شي چې دبشر لپاره اړتيا وي اړيني او ډيري ضروري دي،خو دا هر څه دچا لپاره دي په دي کې مسلمان هم حق لري اوکنه؟؟؟؟ په ابو غريب، او ګوانتانامو کي اودملل متحد دبشر دحقوقو داداري دراپور له مخي په مختلفو شپاړلسوامريکايي کمپو کي زندانونه چې څيني يې تر اوسه هم نه دي کشف شوي چې دبنديانو شميره يې تر زرګونو رسېږي، په افغانستان،

او عراق کې چې ددنیا میډیا یې په سر واخیسته ټول مسلمانان و ، ولې ددغه ترون له توافقاتو څه بې برخي شول، یواځې دانه چې انساني احترام یې وساتل شي، حیواني حق هم ورنکول شو، اوبدبختانه تر اوسه هم دا لړي دوام لري،. شکنجه کول وهل توهینول بې خوبه کول تحقیرول ان سرچپه راځړه ول په انبحاری اعمالوباندی تشویقول اومجبوره کول په بمباریوسوزل چی یوازی بخښنه یې کافی سی حتی وژل به کوره کول اونوروعذابوته لاره ورکول الله دی رحم وکړی.

## ددرواغو معلوملو ماشین

یو ځل دتحقیق لپاره بوتلل شومه، خونه یا غرفه مي په بل شکل ولیدله، په غرفه کي یوه سپینه چوکۍ وه پر هغه کښینول شوم، لاسونه او پښي يې دمعمول په خلاف راخلاصي کړي یو امریکایي سورجګ نری سړي چي ځلیدونکی شنی سترګی یي درلودی ډیرچالاکه غوندی معلومیدی مخ ته راغی مخامخ راته کښیناست ، او دیوه سپین ږیري فارسي ژبي ترجمان په واس

طه يې راته وویل دا ددرواغو معلوملو ماشین دي چی هغه ته یی دغه ماشین (Lie Detector Machine) وایه.

چې څوك دروغ وايې هم يې معلوموي. او که څوك رښتیا وايې هم يې معلوموي، نو که ته موافق يې موږ به تا په دغه ماشین وګورو، ځکه زمونږ شك دي چې ته مونږته دروغ وایي ، نو مونږ به معلومه کړو چې ته دروغ وايې اوکه رښتیا وایي،ما ویل ښه خبره ده خو دا باید دمخه شوي واي ولي مو موږ ته تر اوسه تکلیف راکاوه چي په کلونوموایسارکړي وو،په هرصورت زه موافق یم، اوشفاهي څوسوالونه يې هم وکړل.

سوال – په تا څوك ښه عالم دي؟ جواب زما پیدا کوونکي

دویم سوال- ترهغه وروسته زه خپله

اودریم سوال اوترتاوروسته؟

ځواب :هیڅوك دومره علم نلري چې زما په رازونواوزړه خبر شي، ده راته وویل دریم زه یم، چې دماشین وروسته ستا په زړه عالم شم، ما ورته ویل پام کوه چې دخدایۍ دعوه ونکړي ستا پلار هم زما په زړه نشي عالم کیدلای، خو ته خپل سوال کوه وروسته يې ماشین ته ورکړم او سوالونه يې شروع کړل سوالونه عادي و، ماشین یواځي دبدن حرارت

دويني فشار دبدن له تشنج څخه کار اخيست دزړه ګراف به يې عکاسي کاوه او پر بندي به يې يواځې فشار راوست ، دا هغه اله وه چې يواځې ددروغو په وخت کې سړي وارخطا شي دويني فشاريې لوړ ولاړشي، او بدن يې هيجاني غوندي شي يواځې نور هيڅ هم نشي معلومولاي خو قوي زړه کامياب وي، او کمزوري زړه به ناکاميږي ،همدارنګه دسوالو په جريان کې يې بيا دخداي (ج) له طرفه استازي توب هم کاوه مثلاً پوښتل يې آيا تا دخداي (ج) نافرماني کړي ده کنه ؟او په دي سوال سره نورسوالونه معلوموي، چې دسړي عقيده ښه وي سمدستي ځواب ورکړي نو هيڅ نشته، او که به په ځواب کې انديښمن شو نو ددوي شك به هم پيدا شو. ماشين پنځه شيان درلودل دوه ويرونه يې پر سينه اونس ور تړل دوه دګوتو پر سرونو، او بل پر بازو باندي دياودوني وړده چې دغه اله دنړي په ټوله عدلي ارګانونو کې بي اعتباره اعلان شوي ده، خو امريکايان يې يواځې دوېرولواوځورولو لپاره استعمالوي، طبيعي ده چې انسان ته دروغ ويل ښه عادت نه دي او بد کار دي په دغه بد کار سره البته سړي وارخطا کيږي، همدغه يو سبب و چې د وارخطايۍ په وخت کې فشار لوړيږي، زړه درزا کوي، او خوله په بدن راماتيږي چې دغه ماشين هم ددغه راز تاثيراتو څخه استفاده کوله.

## دامریکایانو تحقیق

یوه ورځ تحقیق ته بوتلل شوم او څه نوي محققین راته راغلي و .چې ما کله نه و. لیدلي، او یوه لنډۍ توره ښځه هم پکښې وه یو پښتون ترجمان هم ورسره و، چې ددوي خبري به یې ماته ژباړلې څه اوبه یې دڅښلو لپاره او څه وچ چپس یې هم په میز ایښي و، څه د جوړ او نا جوړ پوښتنه یې وکړه، وروسته یې یوه نقشه په میز راته کښیښودله دنقشي سر له افغانستان څخه شروع شوي و تر متحده اماراتو پوري له امارات متحده څخه تر سوډانه، له سوډانه څخه بیا تر اروپا پوري، له اروپا څخه بیا تر جنوبي امریکا پوري وروسته یې دنقشي لامل د طلا یا سرو زرو سوداګري راته وویله، چې پر دغه نقشه باندي یو غیر قانوني سوداګري کیده او ته په دغه سوداګرۍ کې شریك وې، ما ویل څه رنګه سوداګري وه ؟ دوي راته ویل دسرو زرو سوداګري وه ، زه دې خبري یواځي دانه چې حیران کړم، بلکي ددوي ناپوهۍ ته هم حیران شوم چې ولي په داسي شیانو باندي وخت ضائع کوي. ما ورته ویل نقشه خو دلالت پردې کوي چې سرچینه یې افغانستان دي او کیداي شي دغه معدن هم هلته وي او تولید یې هم له هغه ځایه څخه کېږي ، دوي وویل بلې همداسي ده، ما ویل سمه ده که تاسي دا ثابته کړئ چې افغانستان د سرو زرو تولید درلود ، نو زه به هر څه په ځان منمه، خو بیا هم دوي په دي اصرار کاوه چې زه ورته تشریح ورکړم خو وروسته بیا خبره پاتې شوه. یو بل سوال یې هم وکړ چې ته په هره اونۍ کې یو ځلي پیښور ته تلې که نه؟ ما ویل نه. دوهم سوال: ته چې هره اونۍ تلې نو د څه لپاره تلې؟ دا محققین له امریکا څخه دتحقیق لپاره ګوانتانامو ته راغلي وه. اوډېرخاص

محققین و چې د سوال په منفي او مثبت هم نه پوهیدل زه په دي حیرت کي حیرتونوته تلم چي خداي خبرله داسي سرتمبه ووسره به زموږبرخلیک څنګه کیږي اوافغانستان خولاهلته پریږده.

په ګوانتانامو کې تحقیق ډېر مختلف غوندي و په یوه اصل باندې متمرکز نه و، او دتحقیق هدف به نه پکښې څرګندیده، دلتون موخه پکي واضحه نه وه، او ډېري نادر وهمي، تصوري مختلف تحقیقونه، او حتي تدریبي برخي یې درلودلې، په هره ورځ کې به نوي نوي پوښتني کیدلې نوي نوي مستنطقین به راتلل ، دجرم او جنایت خبري شاته پاتې شوې، علمي تحقیقات، دسفرونو معلومات، دژوند ټولي تجربي، دکار اړین اړخونه، لیدلي اوریدلي ټول اسرار،او دعلماء، مدرسو ، علمي مراکزو، سیاسي اشخاصو، تاجرانو، او غني زیرمو، معادن صنائع، سیاسيّ غونډي، سیاسي تنظیمونه، تولنیزتوپیر، قبایلي قومي منطقوي ډلې، حتي جغرافیایي ارزښتونه او داسي نور. او په لومړۍ مرحله کې تحقیق څه هغه واقعیتونوته ورته وو چې دهغه وخت میچنې پرې ګرځیدی، خو وروسته یې بڼه بدله شوه زما څخه دافغانستان دټولو سیاسي څیرو، ټولو مشهورو علماوو،او ټولو علمي مدارسو پوښتني وشوي، او جواب ته به یې مجبور ولم، دافغانستان دټولو معادنو، او غني زیرمو، لکه تیل، ګاز، کرومایټ، بیرایټ، سره سیما، تیل لاجورد یاقوت، بیروچ، قیمتي ډبري، اوسپنه او نورو پوښتني هم کیدلې، خود یورانیم دموجودیت ،او معدن څخه په سلګونو ځله وپوښتل شوم، او په نه خبرتیا او یا نه معلومات سره یي یوه میاشت کوټه قلفي هم شوم، په پاکستان کې دمشهورو علماوو، مدارسو هغه غونډي چې دعلمي مطالعې، او یا اسلامي مفکورو، په غرض جوړي شوي وي پر معلوماتو یې ډېر تاکید کیده، لکه دقطیبه جلسه په منصوره کې ،د دیوبند جلسه

په پیښورکي، او په لیبیا کې دعلماء کرامو داتحاد جلسه تصویر شوي ماته راوړل شوه او د مقررینو، او عالمانو په هکله راڅخه پوښتني وشوي ، دعالم اسلام ټول مدارس، او علما تر سوال لاندي راتلل ، داسي علما او مدارس چې مایې کله هم نوم هم نه و اوریدلي، دزکاتونو دورکړي، دخیریه موسسو دمرستو او غرضونو پوښتني، دلویو شرکتونو او په هغه کې دبرخمنو خلکو ونډي، دمذهب او مذهبي خلکو رسوخ، دکلتور عنعنو او دودونو معلومات، دهیواد دعامه خدمتونو، صادراتو، او وارداتو، او دمادي منابعو څرگندونه، په تعلیم او روزنه لگول شوي پانگه او ودې ته ورته نور. یو ځلي خو محقق ماته وویل دکول کښتۍ چې په یمن کې انفجار شوه یوولس امریکایي صاحب منصبان پکښي مړه شول ستا پکې لاس و او ته په دغه وخت کې یمن ته تللي وي، ما ویل څنگه تللي وم پر کومه لاره باندي،ده ویل ته ایران، او له ایران نه قطر، او له قطر نه یمن ته تللي وي، ما ورته ویل ستاسو دکښتۍ دراتلو وخت، دتم کیدو ځای معلوم و، دوی ویل نه ما ویل ما منفجره مواد له ځانه سره وړي و کنه؟ دوي ویل خبر نه یو، بیا مي ورته ویل ښه چې ستاسو دکښتۍ وخت او د لنگر کیدلو ځاي معلوم نه و نو زه بیا څنگه دنامعلومه کښتۍ لپاره ایران، بیا قطر، بیا یمن ته ولاړم، او بل ما تر اوسه ایران قطر یمن نه دي لیدلي که تاسو دا ثابته کړه چې ما په دغه دریو ملکونو کې دیو ملك زیارت هم کړی وي نو ستاسو ټول تهمت (تور) زه پر ځان منمه، خو ددوي هر څه وهمي و یواځې سړی به یې تر سام اوفشارلاندي راوست . بل محقق چې ځان یې ډېر لوي معرفي کاوه نوم یې (Gray)و او په ځیگر یې لیکلي وه کشتوم این ویستیگټر (Costom Invistagator)او یوه ډله نورې امریکایانې ښځي ورسره وي، ویل یې زه ستا لپاره له واشنگټن څخه راغلی یم مداري غوندي و،

او ممثل ته ورته خوی یې درلود نیمه ږیره یې کوڼډی وه لکه دعربو شاهانو غونډي ، ډېر راته نږدي شو لاسونه، او پښې به یې را کتل لکه ډاکټر چې مریض ګوري، زما دلاسو او پښو دولچکو، او زولنو داغو ته به یې اشاره کوله او ویل به یې ولي دا ظالمانو داسې ټینګ تړلی وي، ولي یې رحم نه درباندي کاوه، او ولي ولي ولي، خو زه ورته متوجه وم چې څه به وایې اخرېې راته وویل چې ما ستا لپاره ډېر ښه زیری راوړی دي او تا ته به ډېره خوشحالي حاصله کړي، هغه دا چې موږ ستا لپاره پنځه ملیونه ډالره تخصیص کړي دي، او دابه ستا په نامه په بانک کې جمع شي او حساب به یې ستا په اختیار کې وي ښه کوټې (کور) موټر به درې رانیسي او په افغانستان کې به ډېر موږ او غني سړی یې ژړیې قلم اوکتابچه په میزکښېښودل اوراته ویل یې ستادبانك دحساب نمبر راته ووایه ،ماته د پیشو او موږك قیصه را په یاد شوه چې د ډېره وخته په افغانستان کې د متل په توګه کارېږي چې دومره لنډه ، مزل او دومره زیاته ګټه، او بل مې دکوچنیوالي حالت را په یاد شو چې موږ به خیالي کلاوي، کورونه جوړول، ودونه به مو پکښې کول او پر وچه ځمکه به مو پاچاهي جوړه کړه، ما ورته وویل ولي یې راکوي؟ ده ویل ددي لپاره چې ته به له موږ سره همکاري وکړي یواځې زموږ سوالو ته به سم جواب ووایه او څه چې موږ درته وایو هغه به ومني هغه ډېر شیان و .

ما ورته په خندا سره وویل زه الحمدلله دومره غني یم چې تاسو یې فکرنه کوئ، او ستاسي پیسو ته الحمدلله هیڅ ضرورت نلرم ستاسو پوښتنو ته ما رښتیا جواب ویلي او بیا به هم رښتیا ځواب ووایم خو دخبرو سوداګري مې نه کړې ده او نه ورباندي پوهېږم نور څه راسره نشته یواځې اوس زما ازادي پکار ده او بس ،دویم دبانك حساب نلرم

چي نمبريي درته وښيم، ده ويل ولي زړه ته دي نه لوېږي او که په
موږباندي باور نکوي.
ما ويل دباور خبره نده خو زه واقعاً اړتيا نلرم ستاسي کور ودان
يواځې دومره وکړه چې زه ازاد شم دا ما ته هرڅه دي دهغه تمه هم وخته
تر څلور ساعته تحقيق وروسته يې زه پرېښودم او دوي ولاړل نه يي زه
خوشي کړم اونه يي پيسي راکړي.
يوه لويشتکۍ ډنګره ښځه وه خپل ځان يې انګل( پرښته ) معرفي
کاوه او يو فارسي ژبی ترجمان هم ورسره و ، لومړی يې دا پوښتنه
وکړه چې ته ما پيژني کنه؟'ما ويل هو، امريکايۍ يې دي وويل نه ښه
مي نه پيژني زه ډېره باقوته ښځه يم ستا مرګ او ژوند، ايله کيدل او
بندي کيدل زما په لاس دي، بل چا به له تاڅخه تحقيق کړی وي، خو
شغه ما ته منظور نه دي زه نوي تحقيق کومه، ماته به رشتيا وايې او
سمه خبره به راته کوي، ما ورته ويل چې که له تا وروسته بيا بل محقق
راشي نو هغه ته بيا ستا خبره منظور ده که نه هر يو چي راځي او هغه بيا
له سره تحقيق شروع کوي، نو زموږ برخليک به کله معلوميږي، دي په
ډېره سپين سترګي سره وويل ډېري خبري مکوه زه چې څه درته وايم هغه
کوه، له غروره به دي واچوم، ما هم حوصله له لاسه ورکړي وه زغم مي
نشواي کولاي او څه چې په خوله راغله هغه مي ورته وويل او نوري مي
خبري لنډي کړي ترڅو راڅخه ډيربدالفاظ ونه ويل شي داهم په غصې
سره ووتله او بيا مي ونه ليدله دوتلوپه وخت يي دومره وويل ګوروبه زه
به دی خوښه سم تازمابی احترامی وکړه خولله الحمد بيامی څه ونه
ليدل، زه په دي نه پوهيدم چې واقعاً دغومحققينو پر مونږ ډېرو ساده
ګانو او بي فکرو ګومان کاوه،او خبري به يې د کوچنيانو دخطا ايستلو
په ډول راسره کولي او که يي استعداد اوفکر هم دومره ويوه ورځ يوپرېږ

پړسېدلی سرې چې ټیټه تنه یي درلودل اوخیته یي نژدی خولی ته رسیدل په ډیره ګستاخی سوالونه راځخه کول اوزما په خبرو به یي ملنډې غوندی وهلی داستهزاپه شکل به یي خندل خویوسوال یي ډیر عمیق اودزړه دکومی سوال وکړی هغه داچې مسلمانان به کله موږته دتسلیمی سر ټیټه وی؟ زه په جواب زړه اوښازړه شوم بیا می هم جرات وکړی ورته ومی یل ستاسوداامیدبه کله هم پوره نه سي انشاءالله اوټول مسلمانان به تاسوته سرټیټ نه کړی په مسلمانانوکی به خامخا حتمایوه ټولی ستاسی سره جهادکوی ترڅو امام مهدی رح ظهورکوی چې دهغه په ظهوربه مسلمانان ښه قوت پیداکوی په تاسوبه غلبه کوی،دویل داټولی به څوک وی القاعده یاطالبان به وی که بل څوک؟ماویل والله اعلم خودومره پوهیږم چې یوه ټولی به وی اوکله به هم تاسوستاسوشوم اهدافوته ارام پری نږدی خونورنه پوهیږم چې څوک به وی، ده ډیره لویه ساه وکښل اوویي ویل کاشکی دغه مهدی ژرپیداسوی وای چې موږورسره معلومه کړی وای چې دمسلمانانودغه اخری امید هم ختم سوی وای ماویل موږهم په تلوارکی یو چې دی ژر راسی

ډېر محققین به بدلیدل اوپه بدل کي یي نوي راتلل او هر یوه به بیا له سره تحقیق شروع کاوه، نو ځکه لاتر اوسه پوري هم تحقیق جریان درلود او تر هره وخته هم اوږدیدلي شي، له ما څخه ډېرو محققینو تحقیق کاوه خو ځیني پکښي اخلاقاښه وه، کړنه به یې هم لږ ښه و، څه په انسانیت به پوهیدل خو ځیني به بیا ډېر متعصب و، او یا به یې استعداد ډېر کم و، او ځینو خو به بیخي مشکلات جوړول خلکو ته به یې بې ځایه سزاوې ورکولي او یا به یې په خبرو کې ځورول استفزازی اعمال به یي ترسره کول په کمپ کې قانون وجود نه درلود، څه چې به محقق، ISO ،دمحبس مسؤول DOC ،او جنرال،اود بلاك ان سي یوN.C.O ان

عسکر چې به څه غوښتل هغه به یې کول ، دعسکر خبره سندوه بیا به چا له بندي ځخه پوښتنه نه کوله که به یې وکړه نو عملي کول به یې نه، مثلاً عسکر چې به سزا ولیکله هغه به سزاوه که به بل مسؤول ته وویل شول چې دغه سزا بې ځایه ده او دوي به په دي سره ښه پوه هم شول چې دا سزا بې ځایه ده خو بیا به یې ویل چې اوس خوکمپیموټر ته خبره رسیدلي ده، چا رسولي ده عسکر، او دوي به ویل چې امریکایې عسکر دروغ نه وایې اوربښتیني دي خو اکثرو به په دروغو سره ژوند کاوه همدابه یې کارواو بې ځایه به یې خلك ځورول.

خو کله چې زه څلورم کمپ ته بوتلاي شوم هلته شرائط ښه وه څه دژوند شرائط برابر و ، او دعسکرو اخلاق هم ښه و خو یوائې لویه تلاشي چې په اوه اته میاشتي کې به راتله سخته وه، او خبره به هم تر ډیره حده اوریدل کېدله خو بندیانو به هر وخت خپل مشکلات دنورو ورونو له ستونزو سره تړل او دهغوي لپاره به یې هم دژوند اسانتیاوي غوښتلي، له ما ځخه ځو محققینو تحقیق وکړ، زما محققین، یا مستنطقین لومړی- ټام ، مایکل، بیا ټام، جان ګیري، مارګرین ښځه وه دوه نورو چې زمایې نومونه هیر دي، بیا جورج ریچ داود پریډ مري، یوه ښځه روبل مزرا او نور چې نومونه مي هیر دي خو ډېر عارضي به نور هم راتلل زما سره، مایکل پریډ داود جورج ښه وضعیت وکړ، او اخلاق یې هم ښه واحسان یې راسره کړی دی مننه یې کوم نور داحسان ادایې نه سم کولی ځکه نه یې پیژنم ، نه یې ځورولي یم، او نه یې سزا راکړي ده خو نورو بیا ډېر ځورولم الله (ج) دې په دنیا او اخرت کې بدل اوانتقام ورځخه واخلي.

## نمایشي محکمه

موږ به په محبس کې دسره صلیب داستازواودنوونیول سوی وروڼوله خولوڅخه ډیر اوریدل چې دبشري حقوقو ادارو، او ځیني دولتونو به اعتراضونه کول، چې دغه بندیان چې په ګوانتاناموکي بي برخلیکه پراته دي باید برخلیک یې معلوم شي، او بندیانو به هم دخپل برخلیک لپاره مبارزه کوله او محققین به یې همیشه تنګول چې زموږ برخلیک معلوم کړئ، په اصطلاح مجرم. او غیر مجرم باید سره جلاشي، دتوقیف مرحله بایدنوره ختمه شي او هر څه دقانون په چوکاټ کې باید داخل شي.خو ددریو کلونو وروسته محققینو یوه بي قانونه نمایشي ټولی انتخاب کړه ترڅو بندیان مصروف او دنیا دوکه کړي، دغه ګروپ چې له محققینوڅخه جوړ شوي و، دبندیانو دموقف معلومولو اداره این انمي کمبیټیند ستي ټس ټرایبیونل ریویو بورد

(An enemy combatant status tribunal review board)

ددغه ټولګي لخوامونږ ته کاغذي لیکلي پرچي توزیع شوي او په ابلاغیې سره یي تاکید کیده، پکښي ویل شوي و تاسو دامریکا جنګي دښمنان یاست امریکاحق لری تاسی وساتي خو دغه اداره بیا تجدید نظر کوي چې څوك واقعي دښمنان دي او څوك نه دي،

که څوك جنګي دښمنان ثابت شي نو بیا ورته موقع ورکول کیږي چې په امریکاکې یوي ملکي محکمي ته چې دکلومبیا د ډستریکټ کورټ په نامه (Colombia District Court) یادیږي پیشنهاد وکړي او خپل دوسیه چلینج کړي اوکه بری شی نوازادبه شی .لومړی ځل ځیني وروڼو ورته خوشبیني ښودله خو په حقیقت کې یوه غیر قانوني او توهینوونکي غوندي دوکه او سازش و، یو محقق به ځان معرفي کاوه

چي ستا دوسيه به مخ ته بيايي کمک او همکاری به درسره کوی او ستا شخصي (Personal Representative) نمايندګي به کوي، بل محقق به دحکومت استازيتوب کوي، څوك به ناظرين وي، څوك به قاضيان وي، په حقيقت کې ټول دامريکايي استخباراتو څارنوالان و ، دیادوني ورده چې دغه ټول عسکري محققين يواځي ددي لپاره روزل شوي وو، چې له بنديانو څخه تحقيق وکړي نه دقانون او فيصلي لپاره. دغه ټولي دقانون له نظره هيڅ قانوني حيثيت نه درلود ، او يو سړي هم په قضايي قانون نه پوهيده، ځکه نه يې مسلك او دنده وه، او نه يې قضايي زده کړې کړې وي. يواځې يوه لوبه وه چي روانه کړې يې وه اوده مسلمانانو په سرنوشت يې ملنډې وهلې . زه هم دغه استازي چې ځان يې زما سره همکار معرفي کاوه بوتلم او دتحقيق په خونه کې يې تر محققينو سخت چلنډ ټاسره وکړ ، او بيايې راته وويل چې زه ستا شخصي استازي يم، او له تا سره کومك کوم ستاددفاع لپاره به ستاشواهد راټولوم، اوس ته ماته ټول جريان ووايه چې ته څنګه نيول شوي يې اوڅه جرم دې کړی دی بيا به زه ستا دفاع وکړم، زما سره چې مخکې هم شك و، او تر اوسه هم په شك کې وم، په نرمه اوپسته لهجه مې ورته وويل، مخکې له دې چې زه تا ته خپل جريان ووايم زه څو سوالونه لرم که ته راته توضيح راکړې، ده وويل سمه ده سوال دې وکړه ؟ماورته وويل لومړی دا چې ته زما دفاع کوې په قانون پوهيږې کنه؟ قضايي زده کړه يا مطالعه دي کړي ده کنه؟ ده وويل نه. دويم ته چې کومې ټولي ته ما بيايې چې پر ما باندې حکم کوي، هغه خلك قضاء پوهان دي؟ ده وويل نه. دريم- ته او هغه ټولی چې پر ما حکم کوئ يا مې ته دفاع کوې په کوم قانون سره، دامريکا په ملي قانون، او يا په بين المللي قانون سره؟ ده وويل چې قانون ستاسولپاره نشته ځکه تاسو دقانون په چوکاټ کې نه ياست، قانون په تاسو نه

تطبيقيږي، يوازې دغه ټولی به پر تاسي فيصله کوي، څه چې يې غوښتل دوی به دځانه درباندی حکم کوی نه دقانون دلاری. څلورم موږ ته چې دغه ليکلي پيغام توزيع شو يادونه کوي چې موږ دري کاله له مخه جنګي دښمنان ثابت شوي يو، دا په کوم قانون سره اوچاراباندی حکم کړيدی؟ ده وويل زه خبر نه يم.

بيا ما ورته وويل ښه چې ته په قضاء نه پوهيږي، قاضي په قضاء نه پوهيږي، قانون وجود نلري، او دري کاله مخکي زمونږ په غياب فيصله شوي وي، نو اوس څه ضرورت دي چې زما سره صلاح، مصلحت وکړي، او زما موافقه واخلي، او ته چې زما دښمن يې زما استازي شي، زه کله هم موافقه نکوم، او نه داسي جلسي ته ورځم او نه تا استازي کوم، څه چې کوي خپل کار مودي بل ځلي ما مه وينه، خو دغه ظالم په دې زه مجبورولم، چې ته به خامخا ما استازي کوي او که مي نه استازي کوې، نو زه ستا په غياب کي ستا استازي يم ، ما ورته په حوصله وويل، زه نه پر تا باور لرم نه ستاسو په محکمه باندي ځه چې څه کوي هغه کوه، زه نه چا ته اختيار ورکوم،او نه څه درته وايم، او نه دي استازي کوم، خو اخر خبره دي ته ورسيده چې بدالفاظ مي ورته وويل اوپه ډيرتکليف سره يي زه پريښودلم، خو ددوی فيصله هم هغه وه چې څه يي کړي و ، لدي وروسته يوه بله جلسه دايره شوه چې هغه بيا دا معلومه کړي، چې ته اوس هم امريکا ته خطر يې که نه سره له دې چې ته دامريکا جنګي دښمن يې،اودغه دويم کميسيون دايډمينستريشن ريويو بورډ په نامه يادېده A-R-B ما دغه اداري ته هم منفي ځواب ورکړ،او نه يم ورغلی، خو ددغه کميسيون فيصله ماته نه ده ابلاغ شوي او په افغانانو کې تر دغه وختِه چې زه راوتلم يواځې دوو نفرو ته ابلاغ شوي وه نورورونه لا په تعليق کی وه

څه تورونه او تهمتونه و ، چې بندي دامریکایانو جنګي دښمن کړي،اوامریکاته حق ورکړی چې بې حده بې سرحده یې وساتي القاعده، طالب، دا هغه د سر تکي و ، دې ته ضرورت نه و، چې نور تفصیل ولري، خو ډېر بندیان چې دالقاعدي، او اسلامي امارت سره یې اړه نه درلودله نور مختلف تورونه و ، مجاهد، او یا یې و طالب ته ځای ورکړي، او یایې ډوډۍ ورکړي وي، او یا یو مشهور مجاهد یا طالب په نامه پیژني، یایې لیدلی وي، یا د چاودني، جنګ په نامه تورن وي، ان ځیني ورونه و ، چې دغه یو تهمت هم ورباندي ثابت نه وو، په جزوي شیانو تورن و چې عقل یې نه مني، مثلاً یو سړي دمجاهدینو کوټ اغوستی و، له بل نفر سره تیلفون په جیب کې و، او یوه بل په دوربین کې خپلي مېرې څارلې، او له چا سره دهجرت کارتونه وه، چې ۲۵ کاله مخکي یې اخستي و ، همدي ته ورته تهمتونه وه چې اکثره افغانان همدارنګه بندیان، اوبیا جنګي دښمنان ثابت شوي و .

ما ته ځیني ورونو چې نږدي و تفیصلي خبري کولې او مابه ددوي په حالت ډېر افسوس کاوه .

افغاني بندیان څوك و ، طالب،مجاهد، دموجوده حکومت غړي ، موچي پینه دوز، پښ، چوپان، ژورنالست، صراف، دوکاندار، دمسجد امام، پخواني مجاهد، حتي ددوي خپل ژباړن، او داسي نور، خو په عربو ورونو کې هم دیته ورته خلك وه، چې پاکستان یا پاکستان غوندي نورو دولتوپلورلي و ، مجاهدین، دموسسو کارکوونکي ژورنالستان، طالب علمان، سیاسي مبصرین، حتي دذهن په نادیده مفکوره سره، چې مثال یې دبوسنیا شیخ صابر وو. دپښتنو دمنطقو ډېر ورڼه په عربو کې مزدوري کوي او په کال کې یو ځلي اویادوه ځلي کورونو ته راځي دغه ورونه هم نیول شوي او بندیان و ، ویزي به یې ختمي شوي وي

فریاد به یې کاوه . او هغه بندیان چې ددوي په نظر بري شول هیڅ ورنه کول شول ، دري کاله بند چې دوي پخپله وایې چې بیګناه نیول شوي و بی ګنا ساتل شوی و، ان هغه دمجاهد کوټ یې هم باندي ثانت نکړي چې یوه بهانه شی، بیا هم ناهیلي پریښودل شول، دري کاله یي بي موجبه بندیان کړل اوله خپل وطن اوبچیانوڅخه یي لري ساتلي و . چې بندیانو دامریکایانو دا ناروا عمل ولیده او په دي پوه شول چې یواځې دوکه راکوي او ورځ تیروي بیایې په اعتصاب لاس پوري کړ، ځیني بندیانو ډوډی نه خوړله او ځینو به ډوډی اوبه دواړي نه کولې، او ځینو به یو وخت ډوډی اخیستله ،تر دي چې ځینو عربو ورونو تر مرګه هوډ کړی وو، په همدي طریقه دوه سوه پنځه اویا کسه له ډوډی خوړلو محروم و ،او شمېر بهٔ يې ورځ په ورځ زیاتیده، څه يې غوښتل، محکمه، د بشر احترام او بس.

۲۷ ورځي دډوډی نه خوړلو اعتصاب روان و، او تقریباً دبندیانو ځلور په پنځو کې یې برخوال و ، یواځې مریضان سپین ږیري پاتې وه، ددي لپاره چې دخلکو مشکلات دفع شي دکمپ مسؤول جنرال بندیانو ته وعده ورکړه، چې ځیني مادي دجینوا دکنوینشن مطابق به بندیانو ته حقوق ورکوي، خو فعلاً دي بندیان ډوډی وخوري او هړتال دي ودروي، شیخ شاکر چې دسعودي دتابعیت درلودونکي و، او په برتانیه کې کډوال ستوګن و، په انګریزي ژبه ښه پوهیدي، او په بندیانو کې یې هم محبوبیت درلود په بندیانو ګرځاوه، تر څو بندیان ډوډی وخوري، او اعتصاب ودروي او دا وعده به یې ورکوله، چې بندیان دي خپل استازي وټاکي، هغه به دبندیانو په ستونزو غور کوي او امریکایان به ددغه نمایندګانو سره تفاهم کوي، او دجینوا دکنوینشن ځیني مادې به په دکمپ په داخل کې تطبیقیږي ترڅوپه تفاهم سره مشکل حل سی.

بنديانو اعتصاب وذراوه او ډوډۍ يې شروع کړه، دبنديانو له ما بينه شپږ استازي وټاکل شول، چې دبنديانو مطالبي ترتيب کړي او بيايې له امريکايې مسؤولينو سره مطرح کړي، شيخ شاکر، شيخ عبدالرحمن، شيخ غسان، شيخ صابر، شيخ ابوعلي، اوزه ، د مجلس لپاره انتخاب کړل شوو، موږ کوښښ کاوه چې څومره ژر بايد دبنديانو په مطالبو غور وکړو. او دامريکايانو غولوونکي دسيسو ته ځير شو تر څو بنديان په موږ بدګومانه نشي، دوه ځله دمجلس په کښيناستلوکې ستونزه راغله او موفق نشولو چې سره کښينو، خو په دريم ځل په داخل دکمپ کې سره کښېناستو، په لومړۍ جلسه کې چې دکال ۲۰۰۵ د اګست په اوومه وشوه، په دغه جلسه کې دامريکايانو دمحبس مسؤول هم وو نوم يې(Bomb garner بمب ګارنر ) او يو دمحبس قوماندان او يو بل ورسره و، او شپږ کسه دبنديانو استازي و ، بمب ګارنر لنډ چالاکه سړی چاغ او له چلوډك معلوميده، او بنديانو ته خوبه يې داهم ويل چې زه ابليس شيطان يم، او واقعاً شيطان ته ورته و، لومړی ده په خبرو شروع وکړه، دخبرو متن يې داسي وو، زه امين کمپ غواړم، ستاسو مرسته غواړم، زه په دي پوهيږم چې بنديان تاسو ته غوږ نيسي زه ستاسو سره همکاري کوم، ستاسو فيصلو ته احترام کوم، او ما دامريکا ددفاع وزير رمزفيلډ سره خبره کړي ده، چې تاسي ته ځيني دجينوا دکنويشن مطابق حقوق درکړي، البته انتخاب به يې په موږ پوري اړه لري، بنديانو په خپل وار سره خبري وکړي په جرات سره يي ورته ويل، چې امريکايان دي دمظلومو بنديان شکنجه کول ځورول توهينوونکي، اعمال غير قانوني کړنه، او د بشر ضد اعمال، ودروي نور دي زموږ په عزت او په ديني شرائعو، لوبي نکوي، څلور کاله يې دنيا په دي وغولوله چې تروريستان يې ساتلي دي موږ بې له قانوني کړو په قفسونو کې اچول شوي يو، نور

باید دا چلونه ختم شي ، خو شیطان غوندي امریکایې به هر څه په ځان منل او ویل به یې چې څه تیر شوي هغه تیر شویدي، خو په اینده کې به زه او زماترلاس لاندي امریکایان تاسو ته د بشر په سترګو ګوري،اوانساني احترام به موکوي کڅه ترمالوږ اوترمالاندی خلک ستاسولپاره ښه ژوندنه غواړی، خو دا هر څه د فریب او چل کار و، هر څه وعدي دروغ وي، هیڅ ونه شول دمجلس اعضا له سختو عذابو سره مخ شول له بندیانو جدا شول او چایې معلومات نه درلود چې چیرته به وي، مشکلات بیرته شروع شول خلکو ډوډی پریښودل، په ټوله کمپ کې تقریباً تر دریو سوو ډېر بندیان دي ته چمتو و ، چې نوره ډوډی ونه خوري او ۲۰ کسه خو داسي هم و چې نور به دامریکایانو په دروغو اعتماد نه کوي، او تر هغو به ډوډی، نه خوري او اوبه نه څښي، تر څويې روح له بدنه جلا کېږي، ډېرځله به اعتصاب کېده خو بیا به دامریکایانو دفریب او دروغو په وعدو ماتیده، خو ورروستی اعتصاب تر ټولو سخت او دامریکا یانو دبي اعتمادی اعتصاب و، چې زما تر خوشي کیدلو یعني دکال ۲۰۰۵ د سپتمبر دمیاشتي تر یوولسمي پوري یې، دخلکو شمېر زیاتیده، او خلك دمرګ له خطر سره مخامخ کیدل هره ورځ به خلك دکمزوری له کبله لویدل ، او بیا به هسپتال ته وړل کېدل، دبیهوشی په وخت کې به دواورکول کیده، چې کله به په هوش کې راتلل نو به یې دسیرومونو تارونه له پوزو او رګو څخه غورځول، دوا به یې ځانته نه پرېښودله، او هوډ یې کړی و چې تر مرګه پوري به دغه هړتال ته دوام ورکوي، حوصله او زغم ټولو له لاسه ورکړی و، نوریې دامریکایانو ناروا ظلمونه پر ځانونو نشواي زغملاي، او تر ژوند یې مرګ ته ترجیح ورکړي وه، هسپتال له داسي مریضانو ډك و، او نور مریضان ټول معطل وه، ډاکتران ټول په عاجل ډول لدوي سره بوخت وو

يو خبر خو دا هم ماته ورسيد چې دخلکو حالت خراب شو ډاکټرانو ته امر وشو چې په زوره دوا او خواړه بنديانو ته ورکول شي، خو دډاکټرانو مسؤول جنرال له دې کاره ډډه وکړه چې قانوني مسؤوليت له غاړې واړوي، جنرال چې اوسني ظلم ته يې دوام ورکړی و، ملکي ډاکټران ددې کار لپاره چې پنځه نفره و راوستل بنديانو ته يې په زور خواړه د سپږمو له خوا ورکول، اوويل کېدل چې دغه ډاکټران چې دقانون خلاف خلقو ته په زور ډوډۍ ورکوي په رشوت راوستل شوي دي او د پيسو په مقابل کې يې دا ناروا، او ناجايزه کار کاوه، او دالړۍ دخبرونو له مخې تر اوسه يعني ۱۹/۱/۲۰۰۷ پورې دوام لري څه غواړي، دبشر احترام، او انساني حقوق، قانوني محکمه، خو امريکايان دي کار ته احترام نه کوي دياودوني وړ ده چې دافغانستان اسلامي امارت په وخت کې شپږ کسه غربيان په دي جرم سره نيول شوي و ، چې دوی غير اسلامي دعوت کاوه او له خپلو دندو څخه يې ناوړه استفاده کوله، او دوخت دحکومت دقانون خلاف کار يې کاوه، ديوي مياشتي لپاره توقيف شول او محکمه يې هم روانه وه، بدچلند نه دي ور سره شوي،قانوني وکيلان ورکول شوي و ، ملاقات يې ازاد وو، خواړه يې ښه برابر و ، دوه کسه امريکايان پکښي و ، ملل متحد يوه ماده دبنديز وربانديې زياته کړه، سره لدي چې اثرات يي دافغانستان په ۲۸ مليونو وګړو مستقيماً لويدل، خو اوس چې مسلمانان په زرګونو کسان په کلونو کلونو په زندانو کې پراته دي، دعدل او انصاف، او ددنيا داصولو ناري وهي څوک يي غږ نه اوري، او نه يي د قانون منګولو ته سپاري هغه ملل متحد دي هغه دنيا ده – ولي ، ولي-

## د ګوانتانامو دبرزخ هدف څه وو

دلته دشك او دسوال دواړه نکتې ځاېېدلی شي چې په ګوانتانامو کې زندان جوړول مسلمانان پکښې ساتل دکومې موخې لپاره و، او دامریکایانو په مغزوکې ددې کار پایلي څومره ګټوري وي، ډیر کتونکي په دې عقیده دي چې امریکا هغه برزخ ته دمسلمانانو په وروستلو کې دوي موخي درلودي، اول دا چې دنړۍ ټول مسلمانان چې دامریکا دمعنوي استعمار له پالیسۍ سره مخالفت لري په کلکه ووېروي چې وښیي امریکا دچا له پروا پرته څه چې وغواړي هغه کوي، او دخلکو برخلیك هم ددوي په واك کې دی، دویم دا چې کومه هیولا ددوی په نظر کې نقش شوې چې ظاهراېې دتروریست نوم ورکړی په هغه جزیرۀ کې وساتي چې دیوه ملك قانون هم نه پکښې چلیږي او په دې توګه دخلکو په برخلیک، عزت او مذهب لوبه وکړي.

بوش چې بې ګناه مسلمانانوته یې ډیر توهینوونکي القاب کارول، تر ډیره په سوچه درو غو سره بریالی شو چې دامریکا ملت او هم دنیا وغولوي، چې ګویاده او دده عسکرو په ګوانتانامو کې دده په اصطلاح سرې خواره تروریستان ساتلي، دنیایي ددوی له شره ژغورلې او ځان یې ددې ابتکار قهرمان ګاڼه، خو دوخت تیریدلو هرڅه په عکس وښودل، دا ثابته شوه چې په ګوانتانامو کې ساتل شوي، بندیان اکثره بې ګناه، بې جرمه دي او په تدریجي توګه خوشي کړل شول، بوش چې غوښتل یې برمته شوي مسلمانان دبلا غوندي معرفي کړي په دې ونتوانید چې دمحکمې لپاره څوك خپل ملت ته وړاندې کړې چې خپله بې اساسه دعوه ثابته کړي، چې کم ترکمه ده په دغه جزیره کې نیم یا دریمه حصه یا څلورمه حصه مجرمین او تروریستان ساتلي دي، ملت او نړۍ ته یې

دروغ ښکاره شول او دنړۍ دنورو هیوادونو فشار دي ته مجبور کړ، چې دګوانتانامو دظلم او بي قانونه زندان دتړلو اعلان وکړي، که څه هم دامریکي دبوش داداري تصمیم نیوونکي په دې عمل سره پښیمانه دي او دا یوه لویه خطا بولي خو بیا هم دامریکي دظلم دپټولو په خاطر خاموشه دي. بالاخره دګوانتانامو دزندان نتیجه څه شوه، دامریکا لپاره ګټه شوه، که دمسلمانانو لپاره تاوان شو، زما په نظر څو مهم اړخونه لري چې دامریکي په تاریخ کې به د هغه دولت لپاره دعار او شرم انځور وي.

یو دا چې بوش ثابته کړه، چې دنړیوال قانون مراعات په بي وزلو او کمزورو دي زورځواکه هیوادونه د نړیوال قانون له چوکاټ نه وتلي دي.

بل دا چې دبشر احترام او حقوق دهغه چا لپاره دي چې په زور سره یې پلي کولي شي نه دمظلوم مسلمان لپاره، دریم دا چې قانون او اصول دامریکا لپاره ددوي په ګټو کې دي نه دیو حقیقت په بنسټ سره.

اوس دغو ټکو امریکا ته څه ګټه ورسوله.

لومړی: خلکو ته اوخاصتا مسلمانانو ته دبشرله حقوقو د تېري کوونکي هیواد په توګه معرفي کېدل.

دویم: دنړیوال قانون تر پښو لاندي کوونکی هیواد په توګه معرفي کېدل

دریم: له امریکا سره دنړۍ دمسلمانانو نفرت ډېرېدل.

څلورم: دظلم په برخلیك اخته کېدل.

پنځم: په اسلامي مملکتو کې دبي ساري بدبختیو پیداکول چې نژدې ده کورنیو جنګونو ته لاره هواره شي. دا هغه څه دي چې دهري ورځي په تېریدو سره دامریکا وقار ته ضربه ورکوي.

بله دا چې امریکا دګوانتانامو په زندان سره هر بندي دځان دښمن کړ، که څه هم په توقیفي بندیانو کې ډیر داسي خلك و چې دامریکا پالیسۍ ته یې ښه راغلاست ویلي وو خو ددوي ناوړه او ناروا بند او دبشر ضد کړنو ددوي دښمنان وګرځول، او په زړونو کې یې دهر امریکایي لپاره ډېر نفرت پیدا شو.

دویم: دګوانتانامو په زندان سره امریکا خلکو ته دشخصیت یوه تحفه ورکړه او هر بندي یې دومره مهم کړ چې دنړۍ دخلکو دپاملرنې تمرکز ورباندي کیږي، زما په اند هغه بندیان چې چایې نوم هم نه و اوریدلی، دګوانتانامو په وجه اوس یو رهبر جوړیدلای شي، که وغواړي چې دامریکا په ضد څه وکړي یواځي د ځان په عوض یو جماعت خپلولي شي، وایي احمق دومره په بل نه کوي لکه په ځان.

دریم: څرنګه چې تروریست لقب هغه چاته ورکول کیږي چې په خلکو کې ویره اچوي ترڅو خپل هدف ته ورسیږي، دګوانتانامو بي قانونه دظلم او استکبار توقیف ځاي هم په دي نیت جوړ شوي، چې امریکا په خپل بي رحم او ناروا سلوك مسلمانان وویروي، ترڅو دوی ته دسلامۍ او تسلیمۍ غړ پورته کړي، که د تروریست معنی هم ویره اچول وي، نو د امریکا دغه کار یو غټ تروریستي عمل دي، سره ددي چې دوي وایي چې موږ دتروریست په وړاندي مبارزه کوو. همدي ته ورته تروریستي عملونه ورسره ضمیمه کیدلاي شي لکه خلك په پیسو رانیول دخلکو دوژلو یا نیولو په سرجائزه ایښودل.

## دافغانستان
## استازي او د خلاصېدو زېرى

په ۲۰۰۴/۵/۱۱ نيټه چې دمبارکي روژې ۱۲ مه ورځ وه تحقيق ته بوتلل شوم، خو هغه ځاي ته چې مخکې مي نه و ليدلې ميز، کوچونه،نو ر تجهيزات او اي سي يې هم درلودل ، او تلويزيون هم پکښې نصب شوي و، لاسونه او پښې يې د عادت خلاف را خلاص کړل، او له لږ انتظار وروسته يو افغان او درې کسه امريکايان راغلل، دوه امريکايان محققين و ، چې له ما سره يې ښه وضعه کړې وه، او دريم امريکايې نابلده و، چې ځان يې په افغانستان کې دسفارت کارکوونکى معرفي کاوه، او افغان ځان دافغانستان دحکومت له خوا استازي معرفي کړ سلوک يې ښه و، خو بيا هم په شك کښې وم، او کله مي هم زړه نه منل چې دا به دافغانستان استازي وي، خو دځينو وروښو په ښوا سلامونو مطمئن شوم چې دابه دافغانستان استازي وي، کله چې مي خبره نوره ورسره اوږده کړه پکښې راته دترحم او شفقت اثار ښکاره شول، خو کله يې هم راسره دپخواني هيئت په څير سلوك ونكړ، او وروسته مي دوه ځلي ورسره نور وکتل يو ځلي خو د ډوډۍ دعوت و، چې په لومړى ځل مي دځلورو کلونو پس هغه خواړه وليدل چې موږ ورته خواړه ويلي شو چې داحترام مناسبت پکښې په ځاى شوي و،له حده ډېره ډوډۍ مي وخوړه، ميوه او پيپسي هم پکښې وه، استازي وعده راسره وکړه، چې زما په خلاصيدلو کې به کو ښښ کوي، خو ددې با وجود دامنيتي دلائلو له مخې يو کال بيا هم پاتي شوم، ما هم موافقه درلودله چې دامريکايانو دژوندېو له هدېرو څخه ووځم اوخپل وطن ته راوګرځم خوشرايط راته نه معلوميده، وروسته نور محققين راته راتلل او په هره

اونۍ کې به يې يو دوه ځله ليدلم په ځينې موضوعاتوکي به يې راسره تحقيق کاوه، او بيا چې به مي څه خوړل هغه به يې راکول او څه شي ته چې به مي ضرورت و راکول به يې، معامله انساني شوه او بد رد ويل پکښې نه و ، او دژوند ځيني شرائط برابر شول خو د نورو ورونو بيا هم هغه حالت و، چې کله به ما دمحقق څخه څه شي تر لاسه کاوه نو نورو ورونو ته مي ورکاوه، خو هر څه نه و يوازې عطر وشامپو چې تر نورو يې کيفيت ښه او دزيتون غوړي هم و

تر مياشتي دوو پوري خبره ګرمه روانه وه، خو بيا سره غلي غوندي شوه او استازي هم ماته ويلي وه چې ديوي مياشتي په اوږدو کې به راځي خو خبره له دوو درو واوښته ماته بيرته شکونه غالب شول ، اميد مي قطع شو خو دمحققينو وضعيت تغير ونه کړ سلوك او معامله يې ښه وه اوډيرډير به يې راته ويل چې ډير ژر به ولاړشي يوازې، داستازي خبره ده چې راشي، دکال ۲۰۰۵/۱۱/۱ په لومړۍ ورځ محقق راته زيري راکړ، چې په بله اونۍ کې نمائنده راځي او تا به ورسره بيايې، خو مخکي له دې به تا بل ځاي ته انتقالوي چې وار خطا نشي خو بيا هم مطمين نه وم ځکه دامريکايانو دروغ دومره ډير و چې پکښې رښتيا په ډير زحمت موندل کيدل، خو دمحبس نورو وَرونو به زما پر سادګي هميشه خندل او راته ويل به يې چې دتعجب خبره داده چې څنګه ته دامريکايانو خبري ته اعتبار ورکوي، او ځينو ورونو خو به قسم هم کاوه چې دا يوه دسيسه ده، او يوازې دروغ دي ستا وتل له دي ځايه تر څو نور خلك دلته وي شوني نه دي، خو ځيني نور خلك چې په موجوده حکومت کې يې کار کاوه او د ډير فساد، او چور، وغلا، په وجه امريکايانو بنديان کړي و ، هم په دي خبر شول ، بيا به يې زما دازارولو لپاره په خپلو منځو کې په زوره ويل چې موږ که بنديان شو نو

دوه دري کاله به وي، امریکایان خو زموږ دوستان دي بیرته به مو خوشي کړي پیسي او وظیفي به هم راکړي، غم ددغو خلکو دي چې عمر به یې ټول دلته تیریږي چې مطلب به یې زه وم، خو ما دځان سره ویل الحمدلله چې څه راباندي تیریږي یا تیر شول نو داسلام لپاره وو ماخوقتل، غلا،اودي ته ورته څه نه دي کړي،خو افسوس ددغو خلکو په حالت دی چې هم یې دافغانستان او اسلام سره خیانت وکړ ، او هم بندیان دي دداسي بند یوه اونۍ هم زما د ټوله ژوند تر بند اوږده، او دردمنه ده. الله دي هر څوك ورڅخه وساتي.

بله اونۍ داخله شوه، ما به په زړه کې ویل چې څنګه به شي خو بیاهم وارخطا نه وم، ځکه پوره اطمینان مي نه کیده، دهفتي په لومړۍ ورځ بل ځاي ته بوتلل شوم، چې مخکي مي نه لیدلي و، او نه مي اوریدلي و. دژوند ټول شرائط پکښي برابر و ، فرش کړې خونه جدا حمام، یخچال، تلویزیون، صابون، شامپو دخوړلو میوي ایرکندیشن او دچایو ایشولو تجهیزات برابر و ، چې په لومړي ځلي مي په خپل لاس شین چاي جوش کړ او ومي څښنه چې ما یې له ډېره وخته ارمان درلود، محقق راته راغی او راته ویې ویل نور ته ازاد یې مبارکي یې راکړه او ددي منطقي مسؤول جنرال هم راغی مبارکي یې راته وویله خو محقق ویل چې سبا ته به استازي راځي او بیا به دتګ معلومات درکړي، نورو ورونو ته مي ډېره اندیښنه وه چې په وچو شونډو ژوند کوي، ډوډۍ نه خوري او اوبه نه څښي. څه دبشر احترام او قانون دی؟.

دویمه ورځ په څلورو بجو استازي راغی او راسره کښېناست دکور معلومات یې راکړل او دافغانستان له حالاتو یې خبر کړم ، راته ویې ویل چې سبا په ۱۲ بجو دشپي به انشاء الله پرواز وي، خو تر هغو پوري به ته استراحت وکړې ، ما دمحبس دوضعي راپور هیئت یا استازي ته ورکړ،

او ورڅخه ومي غوښتل چې دامريكايې مسؤولينو سره ووينې او دبنديانو دوضعي په ارتباط خبره ورسره وكړي ده وعده وكړه چې دا كار به حتمي كوي، سبا سهار بيرته هغه ځاي ته بوتلل شوم چې د سزا لپاره جوړ شوي و هلته بيا قلف او دپخوا حالت شو، خو دې ته په تمه وم چې دسره صليب استازي راځي راسره ګوري، چې دمعمول له مخي هلته قانون هم داو، چې تر وتلو وړاندې به سره صليب ورسره كتل چې ملك ته د تګ موافقه يې واخلي كه څه هم امريكايانو ورته اعتبار نه وركاوه.

خو له دې نه مخكي يودم څو امريكايان له تلويزيوني كامرو سره غرفې ته راغلل او يو دپښتو ژباړن يې مل و، يوه دوسيه غوندي كاغذونه يي په لاس كې و، چې پر انګريزي ژبه ليكل شوي او په پښتو ژبه ژباړل شوي و ، په انګريزي ژبه ابلاغ اوژباړن به په پښتو ژبه ورسره بدرګه كول !!

څه‌وو- څو مادي وي چې بايد ما امضا كړې واى او منلي مي واي خو په داسي حالت كې چې دپرېښودلوزيري دركوي ،اونري تهديد هم ورسره مل دى په پارچه كې ليكل شوي و چې ماته يې دهغې د لاسليك كولو وويل.

لومړى، بندي په خپل جرم اقرار كوي، دامريكاله متحده ايالاتو څخه بخښنه غواړي، او دخوشي كيدلو په هكله يې چې امريكايې جرم معاف كړ مننه كوي.

۲- بندي دالقاعدي او طالبانو غړى وو، بيا به له هغوى سره تماس او علاقه نه ساتي اوكمك به نه ورسره كوى.

۳- بندي به بيا په تروريستي اعمالو كې شركت نه كوي.

۴- بندي به بيا دامريكا او دهغوي دمتحدينو پر ضد هيڅ نوعه سياسي او نظامي فعاليت نكوي.

خو که چیرې بندي ددغو مادو تخلف وکړي بیرته به نیول کیږي او تر خپله ژونده به به بندکې ساتل کیږي.
دلیك پای - د بندي دلاسلیك ځاي.
زه ډېر حیران شوم او راغلي امریکایان لوړ رتبه خلك و اوپر تلویزیوني ویډیو باندي تول ریکارډ شول ، خو ما لاځواب نه و ورکړي کاغذیې را وړاندي کړ، چې لاسلیك یې کړم، خو ما بیرته کاغذ په غصې سره ورروغورځاوه او دځواب په ویلو سره مې داسې خوله پرانسته، زه مظلوم یم مجرم نه یم، کله هم خپل جرم نه منم، کله هم بخښنه نه غواړم، کله هم له امریکا څخه دخوشې کیدو مننه نه کوم کوم جرم مي کړی چې قانون ورته جرم وایي، کومي محکمي او کوم قانون مجرم ثابت کړي یم!!!
۲- زه طالب یم طالب وم طالب به یم، خو دالقاعدي غړیتوب نه لرم
۳- په کوم تروریستي عمل کې مي لاس وو، چې بیا به یې نه کوم راته یې و ښیئ که رشتیني یاست؟
۴- افغانستان زما کور دي، پر ما څوك حق نلري چې په خپل کور کې مي دکور دچارو بند کړي، او په داسي حال کې چې دکور مالك زه یم او بل څوك عارضي یرغلګر ما بندوي.
۵- بندي خو اوس هم وم په کوم قانون او ولي بندي وم، بیا مي هم بې له دلیله بندي کولي شي نو له همدې لامله دلاسلیك ضرورت نشته او نه یې امضا کوم!!
خو دوي په ډېراصرار سره راته وویل چې که دغه کاغذ لاسلیك نه کړي، نو ته خوشې کیدلي نشي خو ما ورته منفي ځواب ورکړ، که مي عمر هم تیر شي دابه ونه منم چې مجرم یم، څو ځله بهر ولاړل او بیا به راغلل چې کاغذ ورته لاسلیك کړم خو لاسلیك مي نه کړ، په څلورم ځل

يې راته وويل چې يو څه خو وليکه په خپل لاس سره يي وليکه چې دغه مادي نه مني څه چې ته مني هغه وليکه ، دارتيا له مخې مي قلم را واخيست او لاندي ليکنه مي وکړه: « زه مجرم نه يم کله مي هم دجرم مرتکب نه وم يومسلمان مظلوم يم پاکستان ،او امريکا له ما سره ظلم کړيدي، څلور کاله يې بي برخليکه ساتلي وم، موافقه کوم چې دامريکا په ضد به په نظامي عملياتو کې برخه نه اخلم.» والسلام.

دا مي لاسليك کړ او دوي راڅخه ولاړل ، زه په چورت کې ډوب پاتي وم، چې دوي به دا ليکل څنگه مني او دوي کولاي شي چې هر څه بدل کړي. په هرصورت له دې لږ وخت وروسته دسره صليب استازي راغلل راسره کيښناستل او دخوشي کولو زيری دوی هم راکړ. خو لږ وروسته يې راته وويل چې ته موافقه لري چې افغانستان ته ولاړ شي که نه؟

ما ورته وويل که موافقه و نلرم، نو تاسو را سره څه مرسته کولاي شئ او که به په دغه محبس کې پاتي يم، دوی خپله ناوسي وښودل چې مونږ څه نشو کولاي بيا هم دامريکايانو کار دي، رښتيا هم دوي ناوسه وو. او ما بله چاره نه درلوده يا راتگ افغانستان ته، يا بند خو افغانستان زما کور دی زه ورسره مينه ، محبت لرم، خو يواځې له دوي څخه مي دا معلوموله چې دڅه لپاره راڅخه پوښتنه کوي چې په وس کې مو هم څه نه وي، او دامريکايانو نارواوو ته قانوني بڼه ورکوئ. دسره صليب مراسم خلاص شول ، بيرته پنځم کمپ ته بوتلل شوم چې له خپلو بندي ورونو سره خدای پاماني وکړم، هلته ورونه سپېره لکه له قبرو چې را ايستل شوي وي ، په يوه قفس کې وسره راټول کړای سوی وه ، چې زه هم ورغلم، تقريباً يو نيم ساعت ورسره کښېناستم او بيا ترې رخصت شوم. رښتيا هم چې دځان خلاصيدل راته بدښکاريدل،ځکه چې ددين ورونه مي راڅخه دژوند په بدحالت کې پاتې کيدل، که څه هم ټول ورونه زما

په خوشي کيدلو خوشحاله و ، په پنځم کمپ کی مي يواځې له افغانانو سره وکتل صرف اته نفره هلته و ، چې مخکي مي يادکړل ، خو له عربو ورونو سره دکتنې اجازه رانکړل شول، له هغه ځايه لومړي کمپ ته بوتلل شوم په لومړي کمپ کې مي له افغانانو څخه بيا رخصت واخست، بيا څلورم کمپ ته راغلم، په څلورم کيمپ کې مي له ټولو ورونو څخه رخصت واخيست له عربو او افغانانو ټولو څخه، وروسته بيرته هغه ځای ته بوتلل شوم چې څه استراحت وکړم، او ډوډۍ وخورم، يوولس بجي وې لمونځ مي ادا کړ ډوډۍ مي وخوړل ويده شوم، پر يوه بجه بيرته راويښ کړل شوم دموټر په واسطه ميدان ته راوستل شوم، او په هغه پټه مي لاسونه تړل شوي و ، چې لومړی ځل به دوي بنديان ورباندي تړل، دموټر دروازي خلاصي شوي دسيمې جنرال سرښکاره کړ، او عسکرو ته يې امر وکړ چې له لاسو څخه يې پټۍ خلاصي کړئ، او له موټر څخه يې لاندي ښکته کړئ دهوايي ډګر ټول ګروپونه مړه شول، چې مخته مې وکتل يوه الوتکه پرواز ته چمتو ولاړه وه ورنږدې شوم، يوې خواته امريکايان و ،او بلې خواته افغان راغلي استازي ولاړ و، چې په رسمي بڼه يې دافغانستان راغلي استازي ته تسليم کړم، استازي دخوشي کولو مبارکي راکړه، او راته ويې ويل چې الوتکي ته وخيژم، دا وروستی ځل و، چې دامريکايي عسکرولغړن درانه لاسونه مي له اوږو بيرته شول او په خپلواک ډول الوتکئ ته وختلم، وړه جيټ الوتکه وه چې افغان هيئت له ځانه په کرايه راوستې وه، جنرال الوتکي ته راوخوت او ګوډ باي Good by يې راته ووايه او څلور کسه نور امريکايان هم په الوتکه کې و ، دالوتکي عمله څلور نور امريکايان وو، داسي معلوميدل چې امنيتي کسان وي سره لدې چې الوتکه دشخصي شرکت ملکيت وه، دشپې دري بجي وي چې الوتکه هواته والوته، افغان هيئت

راته افغاني کالي او لنګوټه راوړي وه، په الوتکه کي ازاد وم ښه په راحت سره مې دالوتکي په داخل کې تګ او راتګ کاوه، تشناب ته تلم ويده کيدم او ډوډۍ اونوري ميوي راکول کيدلي، لس ساعته وروسته الوتکه په انګليند کې دتيلو لپاره ښکته شوه له يوه ساعت درنګ څخه بيرته هوا ته والوته، تر اوو ساعتوروسته دکابل پر خواجه رواش هوايې ډګر ښکته شوه، خو کابل له څلورو کلو وروسته راته ډېر نابلده ښکاره شو په ځانګړي ډول په هوايي ډګرکې دنوي تغيراتو له امله چې امريکايانو دومره امنيتي کوټي پکښي ايستلي وي چې نږدې کوچني ښار معلوميده دخاوری ډکی بوجی اوسيميتی ديوالونه، دکابل په هوايي ډګر کې مي دشکر سجده وکړه او وروسته تاکل شوي ځاي ته بوتلل شوم، اوس مي نږدې لس مياشتي پوره شوي په کابل کې په هغه سراي کې اوسيږم چې دموجوده حکومت له خوا کرايه شوي دي، له خپلو اولادو سره ژوند کوم امنيتي چاري مي دحکومت پر غاړه دي او دموجوده حکومت په خبره ديوه کال لپاره خوبه شرائط همداسي وي خو کله چې کال پوره شي نو بيا نه پوهيږم چې څه به کيږي.

له ټولو ورونو مسلمانانو څخه دځان او ټولو مظلومو ورونولپاره ددعا غوښتنه کوم الله دی ټول ورونه دکفاروظالمانودتوقيفونواوهم دټولوزندانونو په خيرسلامت راخلاص کړی الله رب العالمين مو دي تردې له سختو ازموينو وساتي، او په امتحانونو کې دي الله (ج) دبري توفيق راکړي.

## په ګوانتانامو کې
## دمظلومو بندیانو شهادت

که څه هم ما خپل کتاب ختم کړی وو اوچاپ ته مي چمتو کړي وو، چې په ډیر تاسف سره مې دجون په ۱۱ مه کال ۲۰۰۶ کې په ګوانتانامو کې دمظلومو بندیانو دشهادت خبر تر غوږ شو، دایو بي ساري ځوروونکی او زړه پرې کوونکی عمل وو، چې دامریکا دظلم په توقیف ځاي کي یې صورت ونیوه، زه دخپلو وروڼو لپاره له لوی خداي(ج) څخه دجنت الفردوس غوښتنه کوم او قریبانو ته یې جمیل صبر غواړم، که څه هم دالومړي ځل نه دی چې د امریکا په عسکري تم ځایونو کې مسلمانان خپل ژوند له لاسه ورکوي، خو دګوانتانامو لپاره دا لومړی ځل وو چې داسي کار صورت ونیوه، اوس دا معلومه نده چې دا واقعه څنګه پېښه شوې او دغو درې مظلومانو څنګه خپل ژوند له لاسه ورکړ،دلته یواځي یوه مرجع ده چې معلومات ورکوي چې هغه امریکایان دي، چې ددوی دعوه کړې چې بندیانو له خپلو تجهیزاتوڅخه استفاده کړي او ځانونه یې خپله وژلي، زه پخپله دامریکایانو په یوه خبره هم باور نه کوم او نه ورباندي باور کولي شم، ځکه دزندان په ترخو شیبو کې ماته لویه تجربه دا پیدا شوه چې امریکایان ددرواغو استاذان دي او دخلکو دغولولو لپاره په درواغو هېڅ پروا نکوي، همدارنګه یې له موږ سره ګوزاره کړي چې دتوقیف په وخت کې ما ددوی په ویناوو کې بیخي رشتیا نه شول پیدا کولی، ان دوخت په ښودلو کې به یې دروغ راته ویل: مثلاً که به لس بجي وي نهه یا یوولس به یې ویل، همداراز د ورځ اوتاریخ په اړه . والله اعلم

که بالفرض ددوي په وينا اکتفاء وشي اوس بايد دې ته ځير شو چې ولې؟ او څوك ګرم دي؟ او ددغه مظلومانو دقتل مسئوول څوك دي. لکه چې ما مخکې دايادونه کړې او بيايي هم کوم، چې دامريکا دعسکرو بې پروا اوله تعصب څخه ډک چلندچې له سپکوونکيو کړنو څخه برخمن وو، بيخي دزغم نه و، او بندي يې دې ته مطلق مجبوراوه، چې بې تفاوته پاتې نشي، څرنګه چې دامريکايانو لخوا له بنديانوسره له ظلم پرته بل چلند نه وو، نو ټول بوج او فشاريواځې دبندي په زړه پاتې کيده، البته دوخت په تيريدو سره دټولو بنديانو دروحي ناروغۍ دپيداکيدو سبب کيده او همداسې وشوه چې زما په اند په سلو کښې سل بنديان په دغه مرض مبتلا شول، روحي يا ډيفريشن هغه مرض دی چې انسان ته لږ شيان دغرونو غوندي ډېروي همدارنګه دوخت په تيريدو سره انسان په ځينو حالاتو کې خپل کنټرول او حواس له لاسه ورکوي او ډير خطرناکه اعمالو ته زړه ښه کوي.

دګوانتانامو په بنديانوکې ددې ناروغۍ پيداکېدل او ښه تقويه کيدلو هغوی تردي حده راورسول چې ځينې لاملونه يې لاندې هم يادولی شو.

اول: دقانون نه موجوديت

دويم: بې ځايه اونا قانونه سزا ورکول

دريم: دعسکرو بد سلوك او تعصب

څلورم: دبرخليک نه معلوميدل.

پنځم: په انفرادي ځايونو کې دډېر وخت لپاره ساتل.

شپږم: دمذهبي څيزونو توهين لکه قرآن الکريم

اوم: د بوختياالپاره دکتابونواو نورو څه نه ورکول ترڅو خلك يواځې دفکر په تال کې وځنګيږي.

اتم: دبي خوبۍ سزا ورکول چې تر میاشتو، میاشتو پوري وي، چې په نتیجه کې یې سړي هرومرو په عصبي او روحي مشکل اخته کیږي.

نهم: توهیني سزا ګانې لکه بي ستره او بربنډ کول.

لسم: بندیانو ته دهغوی دکورنیو په اړه له اندېښنې ډک معلومات ورکول، دمثال په ډول یو بندي ته دمحقق له خوا ویل کیدل، چې پلار، ورور یا زوی، دې موړ نیولی ، یا مو وژلی دی چې تبعا دانسان په دماغ بوج راولي که څه هم دې ټکي به حقیقت نه درلود.

یوولسم په ښه طریقه: دمریضانو علاج نکول چې دبندیانو به ځانته او خپلې روغتیا ته اندېښنه وه .

دیارلسم: دلیکونو څنډ او څنډ لکه دلیکونو دسطرونو خرابول ترڅو دسړي په ذهن کې شك ځاي ونیسي.

که چېري دا ټوله عوامل په یوه سړي بوج شي ، نو طبعي ده، چې دخپل ځان کنټرول له لاسه ورکوي، او کله خو په ځان باندې نه پوهېږي چې څه کوي او خیریې په څه کې دی، په هر صورت اوسنۍ پیښې که چیري دامریکایانو په وینا دبندیانو له خوا صورت نیولي وي، نو ټول عوامل یې چې داسي خطرناك کارته انسان هڅوي دامریکایانو له خوا برابر شوي دي، چې هغه دبشري حقوقو، دامریکا دملي اساسي قانون، دبین المللي قانون ترپښو لاندي کول دي، اوس عمده سوال دادی ، چې ددغه جرم مرتکب څوك دی؟ او په جرم کې څوك شریکان دي؟ امریکایان او دهغوی سالار بوش خو پړه دبندیانو پر غاړه اچوي او هغه ددې کار مرتکبین بولي، خو که حقیقت ته ځیر شو نو ددي جرم مرتکبین ټول امریکایان دي، ځکه دا هم دوی دي چې د امریکا حکومت ته یې دداسي ظلم د دوامدارساتلو اجازه ورکړې ده، چې هغه ددوی دملي او بین المللي قوانینو خلاف دي، سره لدې چې حکومت دخلکو

لخوامنتخب حکومت او دهغه ملك داساسي قانون په پلي کولو مکلف دي.

## افغانانو ته زما په اټکل دحل لاره !

افغانستان دهرافغان وګړي کور او ددغه کور غړي په دغه کور کې بې له تبعیضه او توپیره حق لري، هیڅ یو څوك ددي حق نلري چې ددغي خاوري بچي ددغه هیواد له حقوقو څخه محروم کړي دمذهبي دود دملي امنیت، او تحفظ، او دسوکاله ژوند لپاره، او دملي اقتصادي فرهنګي ګټو په خاطر چوپړ دهر افغان دنده ده ملي پیوستون، قومي توافق، دمذهبي، ملي عنعناتو، پر بنسټ دټولو وګړو بریالیتوب دی، خداي (ج) دي وکړي چې دا بریا د ټولو وروڼو قومونو په برخه شي، او خپلواك هوسا افغانستان ولرو.

د پام وړلوی هدف افغاني وقار، خپلواکي، په اسلامي چوکاټ کې افغاني دودونو ته احترام دي، او دا هغه څه دي چې افغانانو تردي وخته په مضبوطو کلکو متو، داتفاق په قوي عزم دځان په وینو، دلوي خداي (ج) په نصرت سره ساتلي دي، چې دتیرو استکباري امپراتوریو شوم هدفونه یې خنثي کړي دي چې دهر زمان مستکبرینو په سخته او نرمه لهجه سره پلي کول غو ښتل، دا ځکه خپلواك افغانستان تر ډېره وخته سالم، او دخپل پریکړي واکمن او له غلامۍ څخه ازاد پاتي وو، چې داتفاق اواز به یې، دلوي خداي (ج) په مرسته دهر بدخوااوبدغوني، په مقابل کې زمزمه کاوه که په تاریخ کې دافغانستان تیرو دودونو ته ځیر شو کولای شو پوره پوهه پیدا کړو. دغلیمانو شوم اهداف په تیرو پیړیو کې، چې مستقیم او غیر مستقیم راتلل یواځې دحکومتونو په متو نه دي خنثي شوي او که په ډاګه کړو لویې ناروغۍ او سترې بدمرغۍ

دحکومتونو لخوا پیدا شوي دي، چې دقدرت د ساتلو، او دپردیودخوشحالولو لپاره، او دشخصي ګټو له خاطره وي ، خو دحل لپاره یې بیرته یا ملي پاڅون، او یا ملي وحدت دوا شویدي، چې افغاني زلمیو دسر په قرباني او مضبوطو متو کړي دي، لویه ستونزه چې دپخوا سره توپیر لري داعتماد مسئله ده اعتماد هغه نالیدلي باور دي، چې غیر محسوس ورباندي حساب کیدلاي شي، خو هم دغه عنصر په نني افغانستان کي کمزوری شوي دي حتی دبینه تللی، ددغه عنصر مضبوطول په ټولو افغانانو سره کېږي، افغان طبیعتاً اسلام پاله قوم دي، نو مشکلات یې هم یوائې له دغې لاري څخه ښه حل کیدلي شي، خو مهمه داده چې دي لاري ته تر نورو لارو ترجیح ورکړو، سیاسي نیمګړتیااودهغه پراخه لمن که څه هم ټول افغانان پکښي ځایېدلي شي، خو ښکاره خبره داده چې هرافغان قوم تېرځانګړي ارز ښت، ځانګړي رول اداکولي شي چي هغه نیمګړتیاپوره اوډکه کړي،اوددغي نیمګړتیا ډکول دافغانستان دستونزو اصلي حل دي، ذحل لپاره دتوافق لټون اړین دی لوی عنصر یې داسلامي ملي عنعناتو درناوي او ورته غاړه ایښودل دي اسلام زموږدجامعي چوکات دی نوری ټولی چاری به په همدی چوکات کی صورته نیسی که څوک ددغه چوکاټ ترحدځان باسی نوبیله بدمرغی نه بله نتیجه نه لری ، درپه دره بیچاره افغانستان چې دلوبو ډګرګرځیدلي دی، په مختلفو نومونویې وګړي وژل کیږي، ترور کیږي، اغوا کیږي، بندي کیږي،پردي یې په کورونو ،ښځو، ماشومانو کې لویږي، او څوك دوطن پرېښودلو ته مجبوریږي، دتروریست، قاچاقبر، منافق، زندیق، وطن پلوري، او داسي نومونو نور هم سره بیلیږي، دا ټوله هغه نیمګړتیا وي دی چې موږ یې له مینځه وړلو ته سخته اړتیا لرو – که څوك ورباندي پوره پوهیدلي وي باید ددي کوښښ

وکړي، چې دافغانستان سراسري پریکړه لاس ته راوړي، او په پلي کولويي بريالي شي، او دا لاس ته راوړنه به دنيمګړتياوو دکولو ته لاره پرانيزي، پر همدې لاره به انشا الله دهدف منزل ته نږدي کيږو،هم داابتکارپه خپلومټوسره کيدلای سی.

ګرانو مؤمنو مجاهدو وروڼو او خويندو په دي کې شك نشته چې ټوله به دخپلواك سوکاله ملي افغانستان په هيله یاست، او ددي لپاره به دعاوي او کوښښ کوئ، خو دا هلې ځلې به تر هغو پوري ګړندی ساتو چې دافغانستان دلوي کور وګړي، په خپل کور کې دخپل ژوند دسمسور تياليپاره سره مله شي، او کورنی کړکيچ چې تر ټولو سترغم دی به پشپړه توګه نابود شي، او داسلام دلوي رحمت تر سيوري لاندي ژوند ترسره شي..

والله الموفق والمعان



| شمیره | سرلیک | مخ |
| --- | --- | --- |
| ۱ | سریزه | ۱ |
| ۲ | کړېدلي انځور | ۸ |
| ۳ | دکوره ایستل | ۱۱ |
| ۴ | په پېښور کې | ۱۴ |
| ۵ | امریکایانو ته تسلیمي | ۱۷ |
| ۶ | په کښتي کې حالات | ۲۰ |
| ۷ | دکښتي څخه بګرام ته انتقال | ۲۳ |
| ۸ | بګرام ته رسیدل | ۲۶ |
| ۹ | په بګرام کې دتحقیق مرحله | ۳۰ |
| ۱۰ | کندهار ته انتقال | ۳۵ |
| ۱۱ | په کندهار کې دتحقیق مرحله | ۴۰ |
| ۱۲ | په کندهار کې د ډوډۍ نظام | ۴۵ |
| ۱۳ | دوي هیښونکي قیصي | ۴۸ |
| ۱۴ | څو جالبي پیښي | ۵۲ |
| ۱۵ | دکندهار څخه ګوانتانامو ته لیږدونه | ۶۰ |
| ۱۶ | ګوانتانامو ته رسیدل | ۶۵ |
| ۱۷ | دري ډوله عسکر | ۶۸ |
| ۱۸ | دامریکایي عسکرو تبدیلي | ۷۲ |
| ۱۹ | دګوانتانامو لمړی کمپ | ۷۵ |
| ۲۰ | دډلتا دوهم او دریم کمپ | ۸۰ |
| ۲۱ | پنځم او څلورم کمپونه | ۸۶ |
| ۲۲ | څلورم کمپ | ۹۰ |
| ۲۳ | دافغانستان وفد یا هیئت | ۹۳ |
| ۲۴ | څه لیدلي واقعات | ۹۵ |
| ۲۵ | دوهمه نادره | ۹۹ |

# پېژندنه



ښاغلی ملا عبدالسلام ضعیف د مرحوم ملا نور محمد زوی او د مرحوم مولوی سردار محمد لمسی دی، چې په ۱۳۴۶هـ لمریز د غبرګولي په میاشت کې د کندهار ولایت په پنجوایي ولسوالۍ کې زېږېدلی دی. لومړنۍ زده کړه یې له خپل مرحوم پلار څخه کړي دي، خو کله یې چې په ۱۳۵۵هـ لمریز کال کې پلار وفات شو، نو بیا یې له ورور څخه زده کړې پیل کړې او ښوونځي ته به ته. نوموړی لا دوه کلن نه و، چې د مور د رحمت سیوری هم ترې واخیستل شو او د تل لپاره یې له غېږې بې برخې شو.

په ۱۳۵۷هـ ل کال د کمونستانو له کودتاه دوه میاشتې وروسته پاکستان ته مهاجر شو او هلته یې تر نهم ټولګي پورې زده کړې وکړې، چې د ډېر وخت به اول نومره و.

تر دې وروسته یې جهادي جذبه راوپارېده، سره له دې چې کوچنی هم و، خو بیا هم د خپل مرحوم پلار له یوه نږدې ملګري ملا محمد صادق اخوند سره یې د پنجوایي ولسوالۍ په نلفام کې په صدقیه جبهه کې جهاد پیل کړ او خپلې دیني زده کړې یې هم روانې وساتلې. په پای کې د همدې جبهې مرستیال وټاکل شو، چې د مجاهدینو تر برې پورې یې د همدې جبهې د مرستیال هم د طالب او هم د مدرس په توګه دنده ترسره کوله. د مجاهدینو تر بریالیتوب وروسته د خپلو پاتې زده کړو د بشپړولو لپاره بېرته پېښور ته لاړ. هلته یې د حدیثو د تخصص دورې ترڅنګ اقتصادي، سیاسي او د انګلیسي او عربي ژبو زده کړې هم پیل کړې.

د طالبانو د اسلامي تحریک له پیل راهیسې له دې تحریک سره ملګری شوی دی. د هرات له فتحې وروسته د هرات د مرکزي بانک مسوول وټاکل شو. تر پنځلسو میاشتو دندې وروسته د ملي دفاع وزارت اداري ریاست ور په غاړه شو. تر شپږو میاشتو دندې وروسته یې استعفی ورکړه، خو درې میاشتې وروسته په ۱۳۷۸کال د کانو او صنایعو وزارت د مرستیال په توګه وټاکل شو. یو کال وروسته په ۱۳۷۹کال د ترانسپورټ عمومي رئیس او په ۱۳۸۰هـ کال په اسلام آباد کې د افغانستان لوی سفیر وټاکل شو، چې د ۲۰۰۱ زېږدیز کال تر پایه هلته و. د ۲۰۰۲ زېږدیز کال د جون په لومړۍ د پاکستاني چارواکو له خوا په امریکایانو وپلورل شو او پوره درې کاله او لس میاشتې یې په امریکایي زندانونو کې تېرې کړې، چې په دې موده کې د قرآن عظیم الشان له تجوید سره د حفظ ستر نعمت هم ورپه برخه شو، چې په پای کې د ۲۰۰۵ زېږدیز کال د سپتمبر په یوولسمه امریکایانو د کرزي موجوده حکومت ته وسپاره، چې اوس پخپله هم په کور کې زده کړې کوي او هم خپل بچیان روزي.

الله ج دې خوښ، هوسا او اوږد ژوند ورکړي